استاد غضنفر/ کابل

# دریم انقلاب

چې خط اختراع شو بنیادم نورو همنوعو ته د خپلو تجربو، احساساتو، معلوماتو او فکرونو د رسولو پایښودونې ذریعه وموندله. موږ د لیک په ذریعه د څو زره کاله پخوا مصریانو یا سومریانو د فکر کربښې لوستلای او د هغوی د زړهٔ دربا اورېدلای شو. کله چې بېلو، بېلو کسانو او بېلو بېلو نسلونو د لیک په برکت خپلې تجربې سره شریکې کړې نو بشر د کتاب څښتن شو، تمدن وغوړېد او د ترقۍ اصلي لاره پرانیستل شوه. همدا وجه ده چې ګڼو مؤرخانو او صاحب نظرو د خط اختراع د بشر د فکر او فرهنګ په تاریخ کې تر ګردو لویه اختراع بللې ده.

خو چې کاغذ نه وو، د خط کار خورا مشکل او لیکنې خورا محدودې وې. د کاغذ اختراع د لیکنو په چاره کې یو څهٔ اسانې راوسته مګر بیا هم پوهه د محدودو کسانو په ولکه کې وه ځکه کتابونه چې په لاس لیکل کېدل هم قیمته تمامېدل او اخیستل ئې د هر چا د وس خبره نه وه او هم په خورا کم شمېر کې تکثیرېدل. دا ستونزه خو لا پر ځای پرېږده چې اکثره اثار له منځه تلل.

په پنځلسمه پېړۍ کې چې ګوتنبرګ مطبعه اختراع کړه د کتاب او لیکنو تکثیر اسانه او ارزانه شو. علم د خاصو کړیو او خاصو طبقو له انحصاره راووت او ډېرو کسانو ته دا موقع په لاس ورغله چې یو څهٔ زده کړي. له دې پېښې یعنې د چاپ د صنعت له پیل کېدو سره په اروپا کې علم عام او د کلیسا د اقتدار زوال پیل شو. کوپرنیک د مطبعې تر زمانې له مخه وویل چې ځمکه نه د دنیا منځی ده او نه لمر تر دې راڅرخي بلکې دا تر لمر راچورلي. د هغه دا خبرې د کلیسا له باورونو سره په ټکر کې وې خو څرنګه چې یوازې په یوه قلمي کتاب کې ایسارې وې او د ټولنې پر ذهنیت ئې اثر نه کاوه نو جنجال ئې جوړ نه کړ. مګر ګالیلو چې همدا خبرې د مطبعې په زمانه کې وکړې او خلک ورنه په اسانه خبر شول، د کلیسا خاوندان ئې وارخطا کړل، ګالیلو ئې مجبور کړ چې توبه وباسي او خپلې خبرې غلطې وبولي. کلیسا یو څه نور وخت هم خلک وویرول خو مطبعې ماته ورکړه او خلکو نوې خبرې ومنلې.



# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

مؤسس

**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی

**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی

**ډاکټر عبدالرازق پالوال**

**څېړندوی شېرشاه رشاد**

**حـــیات الله رفیقي**

**عبدالــکریم طالب**

**فضل محمد پنهان**

کمپیوټر چاري

**عثمان عاصي**

پته

علامه حبیبي واټ

د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

د کندهار مجلې دفتر

ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

**دریمه دوره**

**د ۱۳۹۴ش کال لومړۍ ګڼه (وری - غویی)**

**پرله پسې ۶۸ مه ګڼه**

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیي**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

# کال نوی سو

۹۳یم تېر ۹٤یم داخل سو، هر موجود نوې بڼه خپله کړه، طبیعت نه یوازي ونې په زرغونو جامو وپوښلې بلکي سمه او غرونه ئې هم زرغونه کړل او له ځانه سره ئې دا پیغام راوړ، چي په ځانونو کي تغیر او بدلون راولئ، له دغه طبیعي تغیر و تحوله موږ یوازي همدغه عددي توپیر حسوو، په جامعه کي زاړه افکار لا هماغه ډول پاته دي، د نوښت او بدلون په باب نوو افکارو ته ضرورت دئ، چي زموږ د ټولني زړې او له کلونو کلونو شوږېدلې او سولېدلي مفکورې هم نوي او روښانه کړي.

نوي افکار نوو مغزونو ته اړتیا لري، نوي مغزونه باید د خپلو روشنفکرو مشرانو په وسیله نور هم تر و تازه سي، څو د خپلي ټولني د بهبود او هوسایۍ له پاره تضمین سي. دغه ضمانت د مشرانو په لارښوونه او د نوو ځوانانو په تعهد پوري اړه لري، داسي تعهد چي د خپلي ټولني، خپلو خلکو او خپل محیط په باب نوښت او ابتکار ولري، د زړو او کلیشه یي افکارو پر ځای د روښانتیا او بدلون ساحې ته داخل او د اجتماعي تحول په رامنځته کولو کي د خپلي ټولني زاړه مسلط عیبونه او نواقص لیري کړي.

د نوو افکارو په رامنځته کولو کي د نوو مغزونو تر څنګ د روښانتیا او بدلون بله لو وسیله سالم او متعهد مطبوعات دي، څو د دغي وسیلې په توګه ټولنیزي نیمګړتیاوي لومړی معلومي وړسپې ئې د ورک کېدو او محوه کېدو له پاره مبارزه او سنګر خپل کړي، د دغو مبارزو په لړ کي به نه یوازي د خلکو پر فکرونو او د هغوی پر تنویر کار کېږي، بلکي ډله ایز بدلون به په پام کوي، هغه که په سیاسي و اجتماعي خواوو کي وي او که په علمي و فرهنګي اړخونو کي ضرورت وي.

کندهار مجله هم یوه له هغو مجلو څخه ده، چي همېشه ئې د خپلي سیمي د خلکو او اولسونو د افکارو په تنویر کي نه یوازي برخه اخیستې ده، بلکي عملاً ئې د دغي عرصې د راپېښو سوو نواقصو او نیمګړتیاوو په ورک کولو کي کار کړی، او لا به ئې کوي. موږ د خپلو قلمي همکارانو او لیکوالو څخه غواړو چي د دغسي یوه سالم بدلون په رامنځته کولو کي د مجلې لاسنیوی وکړي، څو موږ وکولای سو، د دوی د نظریاتو او افکارو په رڼا کي د خپلو خلکو او ځوانانو د اذهانو په تنویر او پرمختګ کي یوه وسیله سو، داسي وسیله چي د اعتماد او باور وړ وي، داسي وسیله چي د روښانتیا او پرمختګ تضمین وکړای سي.



ليکوال : ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# د افغاني هندوانو تاريخچاڼه

(لومړۍ برخه)

بسم الله الرحمن الرحيم - افغاني هندوان او سيکان د افغان تاريخ او ټولني يوه مهمه برخه ده. هغوی د افغاني کلتور، ټولني او پرمختګ په يون کي خوځنده رول ادا کړی دئ. افغاني هندوانو او سيکانو د هيواد په سپماييزه، حسابيزه او سوداګريزه اډانه کي مثبته او ثابته ونډه لرلې ده. په سياسي او حکومتي اړخ کي هم د هغوی فعاليت او شموليت مأنوس او ځرګند وو.

په شلمه پېړۍ کي زموږ د وطن هندوانو د ټولو افغانانو څه نا څه يوه سلنه جوړوله خو نن دا شمېر خورا لږ سوی دئ. هغوی هم د نورو افغانانو غوندي په تېرو پنځه دېرشو کالو کي د حسرت او مصيبت څپېړی زغملي دي. ځاني، مالي، روحي او ذهني تلفات يې ګاللي دي څو چي بشپړ اکثريت يې مجبوراً له هيواده وتلی دئ.

غواړم په دې ليکنه او څېړنه کي د افغاني هندوانو (او سيکانو) لنډه تاريخچاڼه او سابقه معلومه کړم چي هغوی څوک دي، له کومه راغلي دي؟ کله راغلي دي او څه يې کړي دي ؟ او هم به د هغوی د ژوند حالات،

معاملات، مناسبات او تعلقات د میسرو مأخذونو او منابعو په حواله وشنم. دا ځکه چې افغاني هندوان او سیکان زموږ د تاریخ، ټولنې او ملت یوه معلومه او ثابته حصه ده. قرباني ئې ورکړې دي او د هیواد په رغنده بهیر کې ئې فعال او مثبت رول لوبولی دئ. نو ځکه حق لرو چې حق ئې ادا کړو.

د افغاني هندوانو (او سیکانو) د سابقې د ښه ترا څېړلو، سپړلو او شنلو په خاطر به د هغوی شتون په درو پړاوونو کې ولولو. لومړی به د هغوی پخوانی ځرک ولټوو، بیا به ئې په نونسمه پېړۍ کې مطالعه کړو، او بالاخره په شمله پېړۍ کې به ئې تر نن پوري وشنو.

## لومړی ـ پخوانی ځرک:

ښه به داوي چې یو څه شاته ولاړ سو او د پخوانیو زمانو سره زموږ او دوی تعلق ولټوو او بیا دا تړاو ګام پر ګام تر نن پوري وسپړو.

مستند او ثابت معلومات نسته چې دا علماً وښیي چې هندویت کله په افغانستان کې راپیل سوی دئ. مګر تاریخ پوهان وایي چې د هندوکش د غره جنوبي سیمې په لرغونو زمانو کې د کلتوري او ثقافتي پلوه د «اباسین د مدنیت» سره تړلې وې.

تر میلاد دوه زره کاله یا له نه څلور زره کاله مخکې د افغانستان په سیمه کې آریایان استوګن او واکمن ول، لاکن د هغوی مذهب ننني هندویت نه وو. لومړني آریایان په «آریانا ویجه» کې د هر ډول دین څخه بې برخې او بې خبره ول. مګر وروسته په تدریج سره «طبیعي عناصرو ته احترام» په هغوی کې یو ډول جذبه ایجاد کړه لکه ګهیځ، لمر ځرک (شفق)، ماښام او نور. خو د ریګویدا په زمانه (یعني ۱۴۰۰ قبل المیلاد) کې د طبیعي عناصرو نخښو او ظواهرو لکه وارونا (د آسمان خدای)، اندرا (د برېښنا او تالندي خدای)، سوریا میترا (د لمر او مهر خدای)، آګني (د اور خدای)، ماروت (د باد خدای) او نورو د هغوی دیني ولولې او جذبې راوېښې کړې. په دغو ټولو کې د آسمان خدای تر ټولو مهم او عظیم وو. تر دې وروسته په خپله طبیعي عناصر لکه لمر، سپوږمۍ، ګهیځ، ورځ او نور هم د هغوی د منني او لمانځني وړ وګرځېدل. خو هیڅ بت او بت پرستۍ شتون نه درلود (د افغانستان لنډ تاریخ ـ ۴۸ مخ).

پروفیسور راجیش کوچهار لیکي چې افغانستان یو د ټولو نه پخوانیو هندو مرکزونو څخه دئ. دئ وایي چې د ریګ ویدا زیاته برخه په افغانستان کې لیکل سوې ده چې د هلمند او ارغنداو سیندونه په ریګویدا او مهابهارت دواړو کې د سپېڅلو سیندونو په توګه ذکر سوي دي. که څه هم د ننني هندوانو دیني کتاب «ریګویدا» نومېږي چې د هغه زیاته برخه لرغونو آریایانو په افغانستان کې لیکلې ده او هندوستان ته ئې په ۱۴۰۰ قبل المیلاد کې د خپل مهاجرت پر مهال وړی دئ او بیائې هلته بشپړ او پسي خپور کړی دئ (ویدي خلک: ۲۰۶ مخ). خو ننني هندوان د ریګویدا ځیني مهمي برخي نه مراعات کوي (مثلاً د بت، مجسمې، انځور یا عکس جوړول او لمانځل او یا هم د څارویو قرباني کول او د هغو د غوښو خوړل او نور).

د کابل آسمایي غر هر څوک ښه پېژني چي د دې ښار په زړه کي واقع دئ. هندوان وايي چي دا نوم د «آشا» څخه مشتق سوی دئ چي هغه يوه هندو رب النوع (الهه) وه. هغوی په دې عقيده دي چي څلور زره کاله مخکي دلته يو هندو منډر جوړ سوی وو او يو څراغ (دَيا) پکښې لګېدلی وو چي تر ننه ګواکي هماغسي بل دئ (ګارډين اخبار، د ۲۰۰۹ داګسټ دوهمه).

په هر صورت، تر ۵۵۰ قبل الميلاد راوروسته دا وطن د ايران د هخامنشي سلطنت په قبضه کي راغی چي دوه سوه کاله (يعني تر ۳۳۱ ق. م. پوري) د دې کورنۍ او لړۍ تر واک لاندی وو. نو دا لازمي خبره ده چي د لرغونو افغانانو تهذيب او مذهبي عقايد به هم د ايرانيانو څخه اغېزمن ول. څنګه چي هغوی اور نمانځونکي (زردشتيان) ول او د دې مذهب زانګو بيرته بلخ دئ، نو د افغاني ولايتونو اوسېدونکي تقريباً ټول زردشتيان ول.

تر هخامنشيانو وروسته د لوی سکندر په مشرۍ يونانيانو دا سيمه فتحه کړه چي خاص او ثابت دين ئې نه درلود. مګر د ختيځ له خوا د بودايي دين څپې رارسېدلي وې. يونانيان څه نا څه شل کاله دلته واکمن ول چي هغوی هم وروسته د بودايي مذهب د فلسفې او خيالاتو اثر قبول کړ (پښتانه د تاريخ په رڼا کي: ۱۵۶ مخ).

بيا د څه کم يوې پيړۍ له پاره د موريا کورنۍ واکمنه سوه چي مشهور او لوی واکمن ئې چندر ګپت وو چي برهمني دين ئې درلود. خو د ده لمسي (اشوکا) په ۲۶۱ قبل الميلاد کي خپل دين او آئين بدل کړ او يو کلک بودايي سو او دا دين ئې په افغانستان او ټوله ګندهارا کي تبليغ او خپور کړ.

وروسته باختري يونانيان پر دې سيمه واکمن سول چي تقريباً دوه سوه کاله ئې حکومت وکړ (د ۲۵۰ ق م څخه تر ۵۸ ق م پوري). دا موده د ګندهارا او افغانستان د اولس عقايد او مذهبي افکار پر درې ډوله ول او دوی به درې قسمه ارباب الانواع محترم ګڼل او عبادت به ئې کاوه، يعنی: يوناني، بودايي او زردشتي (محلي) اديان (هماغه: ۱۶۶ مخ).

بيا کوشانيان دلته واکمن ول چي مذهب ئې بودايي او مشهور پاچا ئې کنشکا وو. ويل کېږي چي کوشانيان د خپلی باديه ګردۍ په زمانه کي د څه خاص دين پيروان نه ول. خو کله چي د تهذيب په دايره کي داخل سول او حکومت ئې تشکيل کړ دغه وخت د زردشتي دين پيرو معلومېږي. ولي کله چي د خپلو فتوحاتو په سلسله کي افغانستان، ګندهارا، وادي سند او ګنګا ته ورسېدل نو د مختلفو مذاهبو څخه د تأثر په نتيجه کي دوی د مفتوحه ملکونو ټول ارباب الانواع محترم ګڼل. لومړنی پاچا (کد فيزس اول) د کوم خاص دين پيرو نه وو، خو ټول ئې محترم ګڼل. دوهم پاچا (کد فيزس دوهم) شيوا ته مايل ښکاري او د هند تر فتوحاتو وروسته هغه د شيوا نمانځونکی معلومېږي چي د هندويت يو ښاخ دئ.

د کوشانيانو د حکومت په ابتداء کي په هيواد کي بودايي او اوستايي (يعني زردشتي)

دینونه دواړه مروج ول. خو زردشتي دین د څه نا څه دوو پېړیو راهیسي د هیواد ختیځي سیمي د بودایي دین له پاره خالي کړي وې او د بودا فلسفه پر دې مځکه خپره وه. څکه چي د اشوک د مذهبي شعف په نتیجه کي بودایي مذهب د گندهارا په سیمه کي خپور سوی او د هندوکش تر جنوبي لمنو پوري رسېدلی وو، نو کوشانیان هم د دې دین سره متعارف سول (هماغه: ۱۹۶ـ۱۹۷ مخونه). کوشانیان د ۷۰ میلادي کال څخه تر ۲۲۵ میلادي کال پوري پر دې سیمه واکمن ول.

بیا د څلورو سوو کالو له پاره ساسانیان واکمن ول چي آخري پاچا ئې (درېیم یزد گرد) وو چي د حضرت عمر (رض) د خلافت پر مهال مسلمانانو د نهاوند په جگړه کي پسي واخیست او په مرو کي د (مادوی سوري) له خوا د یو ژرنده گر له لاسه په ۳۱ هجری (۶۵۱ میلادي) کي ووژل سو او بیا نو پر دې سیمه مسلمانان واکمن سول (د افغانستان لنډ تاریخ: ۱۹۹ مخ). دی د ساساني سلسلې پنځه دېرشم او آخري پاچا او د خسرو پرویز لمسی وو.

د لرغونو زمانو دا طرزالعمل وو چي ټولنه او واکمن به د مذهبي پلوه سره یو ول. څکه دین او د هغه منونکي عوام (لکه مریان، بزگران او مزدوران) تل د مالکانو، مذهبي او روحاني لویانو او فیوډالانو په کنټرول کي ول او هغوی بیا په خپل وار د واکمنانو په خدمت کي ول او دا حالت خصوصاً د اسلام د ظهور او زموږ هیواد ته د هغه د رارسېدو پر مهال ډېر مروج او مسلط وو (افغانستان در مسیر تاریخ: ۶۷ مخ).

خو په عین همدې موده کي پر کابل او زابل باندي رتبیلان (یا زنبیلان) واکمن ول چي د زردشتیانو او بودایانو بقایا ول. دوی محلي واکمنان او خپلوان ول. دوی ته کابل شاهان یا برهمن شاهان هم ویل کېږي. دا سلسله اول یعقوب صفاري او بیا عمر صفاري وځپل چي مشهور واکمنان ئې سامند (یا سامنته)، کملو (یا کلمو) ول. وروسته سبکتگین او بیا د هغه زوی سلطان محمود غزنوي وځپل چي مشهور واکمنان ئې جې پال، آنند پال او تریلو جېپال ول. داسي ویل کېږي چي هغوی برهمنان (لمر لمانځونکي) ول چي د هندو مذهب یو ښاخ دئ. د تاریخي منابعو په حواله د لوگر د شجاوند (یا سگاوند) برهمني معبد ډېر شهرت درلود چي د کابل په جنوب کي واقع وو او د لوگر، کابل، غزني او گردېز د سیمو د برهمنانو تر ټولو غټ معبد وو چي آن د هندوستان څخه هم خلک د هغه زیارت او تقدیس ته راتلل څو چي عمر لیث صفاري حمله پر وکړه او دا معبد ئې د بتانو په شمول وران کړ (افغانستان در پرتو تاریخ: ۲۶۳ مخ). خو محمود ټولي سیمي د هغوی څخه ونیولې او هغوی ئې ویهند او بیا پنجاب ته وشړل او د دوی دین ئې هم کنټرول او تحدید کړ. داسي هم ویل کېږي چي هغوی د کابل او زابل څخه تر شړني وروسته په هند کي د «هندو شاهانو» په نوم وپېژندل سول او هلته ئې واکمني لرله. ډاکټر محمد ناظم په خپل څېړنیز او معتبر اثر کي لیکي چي: «په لسمه مېلادي پېړۍ کي د هندو شاهزاده گانو

دغه لړۍ د لغمان څخه د چناب تر سینده او د جنوبي کشمیر له غرونو څخه د ملتان د سلطنت تر پولې پورې واکمني کوله چې پایتخت ئې ویهند (ننني هوند) وو چې دوی هندو شاهي سلسله وه (حیات و اوقات سلطان محمود غزنوی: ۸۲ او ۱۸۱ مخونه). پس داسې ښکاري چې هندو شاهان پر کابل او زابل واکمن نه ول، بلکې پاچهي ئې د لغمان څخه مخ پر ختیځ خپره وه.

څکه نو ویلای سو چې تر اسلام مخکې او وروسته دلته هغه هندوان موجود نه ول چې اوسني هندوان او سیکان به ئې اولاده یا نسل وي. د هغوی ژبه، دین، کلتور او کړه وړه د ننني هندوانو او سیکانو سره هیڅ تړاو نه لري. مشهور تاریخي اثر «حیات افغاني» په دې ارتباط لیکي چې افغاني هندوان د هغو پخوانیو هندوانو اولاده نه ده، چې د دغه ملک پخواني اوسېدونکي ول. بلکې دوی وروسته د ډیلي پاچهانو په وخت کې زیاتره له هندوستان، پنجاب او سند څخه راغلي او دلته میشته سوي دي (حیات افغاني: ۴۷۹ مخ). پس له دې معلومېږي چې د ننني افغاني هندوانو او سیکانو نسل د لرغونو نامسلمانو افغانانو څخه نه دي بلکې دوی د اسلام تر خپرېدو وروسته په مختلفو زمانو کې دلته راکوچېدلي دي. تر ټولو مهمه دا چې د دوی ژبه، دین او کلتور د لرغونو افغانانو سره هیڅ تړاو یا ورته والی نه لري. وګورئ د ننني هندوانو او سیکانو ژبه پنجابي او ملتاني ده خو د لرغونو افغانانو ژبه آریایي وه چې ننني پښتو او پارسو ئې لوښي دي او د هغوی اولادونه نن پښتو، دري، ازبکي، ترکمني، بلوڅي او نورستاني ژبې وايي چې یوه هم د پنجابي او ملتاني ژبو سره کوم اساسي تړاو نه لري.

په هر حال، حتی په افغانستان او سیمه کې د مسلمانانو د حاکمیت او د اسلام تر خپرولو وروسته هم ډېره اوږده موده افغانان ټول مسلمانان نه ول بلکې د پلرونو او نیکونو دینونه ئې لرل چې هغه بودایي، زردشتي او یو څه هندویت ول. لکه څنګه چې «د درېیمې هجري پېړۍ په اوله نیمايي کې په سیستان کې یو سلطنت جوړ سو چې ډېر ژر ئې دومره اقتدار وموند چې د عباسي سلطنت سره ئې سیالي شروع کړه. د دې سلطنت بنسټ یعقوب (صفاري) ایښی وو ... د یعقوب په کارنامو کې د کابل فتح شامله ده. یعقوب په ۲۵۷ هجري قمري (۸۷۰ میلادي) کې پر کابل حمله وکړه او دا ښار ئې د کابل شاه څخه فتح کړ او د دې ښار لوی بت ئې د بامیان د بتانو سره عباسي خلیفه ته ولېږي» (پښتانه د تاریخ په رڼا کې: ۲۶۱ مخ). پس داسې معلومېږي چې کابل شاهان بودایان ول، اوسېدونکي ئې هم اکثریت بودایان ول چې لوی لوی معبودونه ئې موجود ول او لوی لوی بتان ئې لرل چې عباسي خلیفه ته ولېږل سول. «یعقوب لومړی سړی وو چې د کابل شاهانو حکومت ته ئې لویه ضربه ورکړه او کابل ئې د دوی څخه ونیوی او هغوی ئې په لغمان او ویهند کې د خپل پایتخت بدلولو ته مجبور کړل» (هماغه: ۲۶۲ مخ).

یعقوب لیث آن تر دې مخکې (یعني په ۲۴۹ هجري کې) د رتبیلانو سره جګړې کړې

وې. په رخد (اوسني کندهار) کې ئې رتبیل د
شپږو زرو جنګیالیو په شمول وواژه. دېرش
زره ئې هم ژوندي ونیول د څلورو زرو آسونو په
شمول. د رتبیل زوی کبر (ګبر، ګیر)
نومېدی. که د ګبر د کلمې دا قرائت صحیح
وي، نو وایو چې د دریمې پېړۍ په منځ کې د
رتبیلانو دین زردشتي (ګبري) وو، او د
تاریخي اسنادو په حواله پوهېږو چې د کبري
(ګبرکي) دیانت په سیستان او غربي
افغانستان کې لا تر دې عصره پوري پاته وو. په
آخر کې د دې کهول افراد مسلمانان هم ول
(تاریخ افغانستان بعد از اسلام: ۵۹مخ).

په هر صورت، افغانستان ته د اسلام تر
راتګ یو څه مخکې په شمال، ختیځ او تر څه
حده په جنوب کې بودایي، برهمني (لمر
پرستي) او شیوایي دینونه موجود ول. د هیواد
په لوېدیځو سیمو کې هماغه پخوانی مذهب
یعني زردشتي دین خپور وو (افغانستان در
مسیر تاریخ: ۶۶مخ). خو د هندویت بېلابېل
ښاخونه (لکه برهمني، شیوایي، میترایي) په
کابل، لوګر او ګردیز کې موجود ول چې بیا
ټول مسلمانان سول یا هند ته وشړل سول.

د مرحوم کهزاد له قوله تر اسلام دمخه د
هندوکش په سویلي برخو کې شیوایي طریقې
(د لومړۍ مسیحي پېړۍ څخه) او لمر
پرستي (کیش میترا) چې د لمر لمانځنې یوه
برخه او د اوستا یو یادګار وو، په زمین داور او د
هیواد په مختلفو برخو کې (تر نهمې عیسوي
پېړۍ پوري)، همدا راز د هندویت مختلفو
طریقو په زابل، کابل، ننګرهار، لغمان، پکتیا
او د سند رود د ښۍ اړخ په سیمو کې رواج
درلود او هر یوه په همغو سیمو کې خپل
معبدونه لرل، لکه په زمین داور کې د «زور» د
لمر پرستۍ عبادت ځای، په کاپیسا کې د
«آرونای» لمر پرستۍ معبد، د کابل د
خیرخانې په کوتل کې د «سوریای» برهمني
معبد او د لوګر په سګاوند کې هندویي معبد د
افغانستان د تاریخ په پاڼو کې مشهور معبدونه
دي (د افغانستان تاریخ: ۴-۵مخونه).

مطلب دا چې د اتمې او نهمې مېلادي
پېړیو پر مهال د اوسني افغانستان ختیځې
سیمې لا بیا هم د غیر مسلمانانو په واک کې
وې. د ګندهارا «مهاجن پاد» لړۍ د کابل له
سیند څخه تر پنجاب پوري خپره او غځېدلې
وه چې بودایي او هندو کورنۍ پکښې شاملې
وې او د زرګونو کلونو له پاره واکمنې وې.
لومړۍ عباسیانو هغوی خوړمن کړل، بیا
صفاریانو کمزوره کړل څو چې په یوولسمه
پېړۍ کې غزنویانو په تېره بیا سلطان محمود
غزنوي بېخي کمبله ورټوله کړه (ویکي پیډیا
ویب پاڼه ـ هندیان په افغانستان کې). مګر
مرحوم احمد علي کهزاد هغوی کابل شاهان
بولي او په روښانه ټکو ئې راپېژني: د کابل
شاهانو لړۍ د رتبېل په نامه د هماغه کیداني
واکمنیو اولاده ده، چې د لویو کوشانیانو او
یفتلیانو پاته شوني دي چې څو پېړۍ ئې د یو
افغاني دولت څراغ روښانه وساته. دغه اوږده
لړۍ پر دوو برخو وېشل کېږي: لومړۍ
رتبیلان یا کابل شاهان، چې د کشاتري طبقې
یا «جنګیالي» ول او وروسته ئې د تګین او
تجن القاب غوره کړل. د دې طبقې بنسټ
ایښودونکی برهاتګین او وروستی واکمن ئې

«لکه تورمان» دئ.

دوهمه لړۍ د برهمن څخه عبارت ده، چي په لومړيو کي ئې د پورتنۍ طبقې يعني رتبيلانو د وزارت دنده لرله او په وروستيو کي «کالار» د دې لړۍ بنسټ ايښودونکي له واکمنو څخه واک په خپل لاس کي واخيست، چي په تاريخ کي د برهمن شاهانو په نامه يادېږي.

په هر حال، د کابل شاهانو دغو دواړو لړيو له شپږمي تر يوولسمي عيسوي پېړۍ پوري د هندوکش په جنوبي برخو کي واکمني کوله چي مرکز ئې په کابل کي وو او د بودايي او برهمني دين پلويان ول... دوی د کابل د ولايت څخه تر سند او د سيستان تر هامون پوري واکمني لرله، تر هغې چي د افغانستان صفاري دولت رامنځته سو او د کابلشاهانو د واک ساحه را تنګه سوه او بيا وروسته غزنوي دولت ګام پر ګام له کابل څخه د ختيځ پر لور په لغمان، پېښور، اټک او ويهند کي او بالاخره د سُتلج هغه لور ته وشړل، تر هغې چي بېخي له منځه ولاړل (د افغانستان تاريخ: ۲۵ ـ ۲۶ مخونه).

مسلمانانو به دوی ته هنديان ويل. ځکه ئې صحيح ويل چي د ختيځ افغانستان خلکو د هند د نيمي وچي سره پياوړي کلتوري اړېکي او تړاوونه لرل. د هغوی اکثريت بودايان او هندوان ول (ويکي پيډيا ـ هندويت په افغانستان کي).

اسطخري په ۹۲۱ ميلادي کي داسي ليکي: «کابل يوه کلا لري چي د خپل طاقت په خاطر نمانځل کېږي. هغه ته صرف يو سړک ورغلی دئ. هلته مسلمانان اوسېږي، او هغه يو ښار ګوټی لري چي د هند کافران پکښي استوګن دي».

خو لومړی ځل په مؤثق ډول په افغانستان کي د «هندو» کلمه په ۹۸۲ ميلادي کال کي د «حدودالعالم» د نوم ورکي ليکوال له خوا ذکر سوه چي هغه په ننهار (ننګرهار) کي د يو پاچا يادونه کوي چي په عام محضر کي په اسلام مشرف کېږي. که څه هم هغه تر دېرشو زياتي مانديني لرلې چي مسلماناني، افغاناني او هندوانياني وې خو دغو نومونو صرف جغرافيوي اطلاق درلود. مثلاً هندوانياني يعني د هندوستان اوسېدونکي، افغاناني يعني د افغانستان اوسېدونکي (هماغه ويب پاڼه).

خو يوه خبره بايد مدنظر ولرو او هغه دا چي دا صحيح ده چي د لرغونو افغانانو (هغوی چي هندوان ول) اولادونه نن مسلمانان دي خو دا خبره د دې معنی نه لري چي نني افغاني هندوان او سيکان هم ګواکي د هماغه لرغونو افغانانو اولاده ده. ځکه:

لومړی دا چي د هغوی د اولادې ژبه او د دوی ژبه هيڅ ارتباط، ورته والی او تړاو نه لري. د هغوی د ژبو بقايا (يعني پښتو او پارسو) همدلته راټوکېدلي دي خو د دوی ژبي (پنجابي او ملتاني) په هندوستان کي زوکېدلی او دلته راغلي دي.

دوهم دا چي د هغوی دين، مذهبي مراسم او کلتور د دوی د دين، مذهبي مراسمو او کلتور سره هيڅ ارتباط او ورته والی نه لري که هغه آريايان ول يا رتبېلان او کابل شاهان او

که ننني پښتانه دي یا تاجکان یا بلوڅان.

دریم دا چي تاریخي معتبر آثار په خپله د افغاني هندوانو او سیکانو په حواله لیکي چي دوی هندي کډوال او ناقلین دي چي د بېلابېلو پاچهانو په زمانو کي افغانستان ته راکوچېدلي دي.

څلورم دا چي تر اوسه کوم داسي مؤثق او معتبر اثر، سند او مأخذ نسته چي علماً ثابته کړي چي ننني افغاني هندوان او سیکان د پخوانیو نامسلمانو افغانانو نسل دئ.

په هر حال، تاریخي اسناد او معتبر آثار (مثلاً تاریخ بیهقي، ابن جوزي او نور) لیکي چي سلطان محمود غزنوي په خپل سل زره کسیز پوځ کي د هر توکم او هري طبقې خلک لرل، مثلاً ترکان، پښتانه، عرب، دیلمي، خراساني، غوري، هندي او نور. دلته د هندي څخه مطلب هندوان دي (او که ئې مطلب هندوان نه وي نو هندي په خپله د هندوستانیانو یا غیر افغاني بهرنیانو مفهوم ثابتوي). لکه څنګه چي مشهور افغان تاریخپوه مرحوم غلام جیلاني جلالي د تاریخ بیهقی په حواله لیکي چي د غزنوي دربار هندي نژاده پوځیانو د عمومي سپه سالار څخه وروسته خپل لوی قوماندان درلود چي «هندو سالار» ئې باله. خو کله چي تر سلطان محمود غزنوي وروسته د هغه زوی سلطان مسعود پاچا سو، نو دا مقام ئې یو هندو افسر (تِلک» ته ورکړ (غزنه و غزنویان: ۱۲۱ مخ). هندو لښکر په خپل منځ کي هندو افسران لرل چي هغوی به هندو نقیبان (کندک مشران) او هندو سرهنګان (غنډ مشران) بلل کېدل او د دوی تر قوماندې لاندي به هندو سپاره او پلي پوځیان ګومارلي ول (هماغه: ۱۲۴ مخ). دالا څه، د طبقات ناصري مؤلف د سلطان محمود غزنوي د فیلانو شمېر تر دوه نیم زرو پوري بولي چي اړونده افراد یعني ساتونکي او چلوونکي ئې اکثراً هندوان ول (هماغه: ۱۲۸ مخ).

ډاکټر محمد ناظم د رسالة الغفران په حواله لیکي چي د سلطان په عسکرو کي زیات شمېر هندوان هم شامل ول. هغوی په غزني کي په یوه خاصه سیمه کي اوسېدل. رسالة الغفران (۱۵۳ مخ) په غزني کي د یوې هندوانۍ مېرمني د «سَتي» کیدلو صحنه هم بیانوي (ستي د مېړه تر مړیني وروسته د ماندینې له خوا ځان سوځولو ته وایي چي نن هم د هند په ځینو برخو کي دا غیر انساني کلتور رواج لري).

ډاکټر ناظم د معتبرو آثارو په حواله وایي: هغه هندوان چي د سلطان تر مشرۍ او ځواکمنۍ لاندي ول، له آرام ژونده برخمن ول او په غزني کي د استوګني ځایونه ورکول سوي ول او همدا راز هغوی اجازه لرله چي خپل مذهبي مراسم په آزاده او ښکاره توګه تر سره کړي (حیات و اوقاتِ سلطان محمود غزنوي ـ ۱۳۳ او ۱۵۳ مخونه).

هو، دا هغه سلطان محمود غزنوي وو چي په ویهند، ملتان، بهتنده، تهانسیر، متیوره، قنوج، ګوالیار، کالنجر، سومنات او نورو ځایونو کي ئې هندو مندرونه ویجاړول خو افغاني هندوان ئې نازول.

په هر صورت، د غزنویانو، غوریانو،

خلجیانو، سوریانو، مغولو او درانیانو د واکمنیو پر مهال د هند او افغانستان د خلکو تګ راتګ او میشتېدنو مسلسل دوام کړی دئ. مسلمانان هلته ورغلي او هندوان دلته راغلي او میشته سوي دي. د زیاتو معتبرو آثارو له مخي نني افغاني هندوان (او سیکان) هم د همدې بهیر یوه برخه ده چي له هنده دلته راکوچېدلي او اوسېدلي دي. دا شتون او بقا پرله پسې پاینښت مینډلی څو چي په نولسمه پېړۍ کي د هغوی نفوس تر پنځو لکو (۵۰۰۰۰۰) هم واوښت. مشهور انګریز څېړونکی او د نولسمي پېړۍ یو عیني شاهد (مونټ ستیوراټ الفنستن) په ۱۸۳۹ کي داسي لیکي: «د هندوانو په خپل روایت، دوی د هندوستان مهاجرین دي چي په افغانستان کي د ډېرو پخوا وختونو څخه میشت سوي دي او داسي ښکاري چي د دوی کیسه ښه بنسټ لري. په ځینو ځایونو کي هندي افسانې اوربدل کېږي، خو هیڅ یوه ئې ډېرو لرغونو مهالونو ته نه رسېږي». (د کابل سلطنت بیان: ۳۲۱ مخ).

د پېښور په سیمه کي «ګورکتي» چي هلته کاروانسرای جوړېدی، د مغولي مؤسس واکمن (بابر) په زمانه کي د هندوانو د عبادت ځای وو. دا لا څه، د احمد شاه بابا او بیا د هغه د اولادې د واک پر مهال هم په کابل، کندهار، پېښور، جلال آباد، او نورو لویو ښارو کي هندوان (او سیکان) اوسېدل چي ټول هندي مهاجرین ول. مشهور انګریز لیکوال او سیاح (جورج فوسټر) چي د احمد شاه بابا تر مړیني یوولس کاله وروسته (یعني په ۱۷۸۳ کي) ئې د افغانستان څخه لیدنه وکړه او په ډېرو ولایتونو کي وګرځېد، خپل د سترګو لیدلی حال داسي بیانوي: «په ښارونو کي زیاتره هندوان او د پنجاب مهومتیان ژوند کوي. په کندهار کي زیاتره ملتاني او راجپوتي هندي کورنۍ میشتې سوي دي. دوی د خپلي صنعتي او تجارتي پوهي په لرلو سره خپله سوداګري او شتمني پراخه کړې ده. د بخارا او سمرقند ترکمني تجاران او سوداګران په وار وار دغه بازار ته راځي او له دغه ځای څخه خپل هیواد ته په زیاته اندازه نیل لېږدوي. کندهار ته هر کال د پاسني هند له بېلا بېلو برخو څخه دغه ماده رارسېږي. د هغوی (هندو) سوداګرانو له خوا د زیاتو هټیو نیول، چي په چلولواو لېږدولو کي ئې هوسایي سته، په کندهار کي د دوی د آزادۍ او مصؤنیت او خوندي توب شاهدي ورکوي (دراني احمدشاه: ۴۷۳ مخ).

مشهور هندی تاریخپوه ډاکټر ګنداسینګه لیکي چي: «شاه د مرهیټانو سره د خبرو اترو له پاره هندو وکیلان (آنند رام او کولراج) وګومارل. ده مشهور هندوان، لکه (سوک جیوَن) د کشمیر د والي په حیث او (کابلي مل) د لاهور د والي په حیث وټاکل.

هندوانو او سیکانو دلته د تجارت او سوداګرۍ (د بشپړ خپلواکۍ او مصؤنیت) تر څنګ د خپلو مذهبي عباداتو په برخه کي پوره آزادي درلوده او د دوی په معابدو او ګوردوارو کي هیڅکله مداخله نه کېدله. ځینو هندوانو او سیکانو له پېړۍ راهیسي په افغانستان کي له کومي بېري او بدبینۍ پرته د افغاني

ګاونډیانو سره ژوند کړی دئ. د دې خبرې ستر ثبوت دا دئ، چې په ۱۹۴۷ کال کې هغه وخت، چې د پاکستان نوی ګاونډ دولت جوړ سو په هغه کې هندوان او سیکان د لیدل کېدو په صورت کې وژل کېدل او نارینه، ښځې او کوچنیان په عامه توګه ووژل سول یا وربرېدل، خو دا شان غیر انساني بڼه او پېښه هیڅکله په افغانستان کې و نه لیدل سوه» (دراني احمد شاه: ۴۷۴ مخ).

دا چې په خپله یو هندی مشهور تاریخپوه (د یو سیک په حیث) د افغاني هندوانو او سیکانو ژوند امن او ښېرازه بولي او د هغوی اجتماعي، دیني، اقتصادي او مدني حقوق له ډېري زمانې راهیسي ژغورلي ګڼي نو له دې ثابتېږي چې د افغاني هندوانو او سیکانو استوګنه له هره پلوه تأمین او تضمین وه.

نور بیا ...


د دې برخې اړونده مأخذونه:

۱. د افغانستان لنډ تاریخ: عبدالحی حبیبی، مترجم: عبدالرؤف بېنوا، (اووم چاپ)، صدیقي خپرندویه ټولنه، کوټه، ۱۳۹۲ لمریز.
۲. افغانستان در پرتو تاریخ؛ احمد علي کهزاد، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۴۶ شمسي.
۳. حیات افغاني؛ محمد حیات خان، ژباړونکي: محقق فرهاد ظریفي او محقق عبدالطیف یاد طالبي؛ سریزه، تحشیه او تعلیقات: اکاډمیسین عبدالشکور رشاد (دوهم چاپ)، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۲۰۰۷ میلادي.
۴. پښتانه د تاریخ په رڼا کښې؛ سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل، یونیورسټي بُک ایجنسي (شپږم چاپ)، پېښور، ۲۰۰۶.
۵. حیات و اوقاتِ سلطان محمود غزنوی؛ داکتر محمد ناظم، مترجم: عبدالغفور امینی، (چاپ سوم)، انتشارات میوند، پشاور، ۱۳۸۱ شمسي.
۶. د کابل سلطنت بیان؛ مونټ سټیوارټ الفنسټن، ژباړن: پوهاند محمد حسن کاکړ او نصرالله سوبمن، (دوهم چاپ) دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۲۰۰۸.
۷. غزنه و غزنویان؛ غلام جیلاني جلالي، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۴۶ شمسي.
۸. د افغانستان تاریخ؛ احمد علي کهزاد، ژباړن: اورنګ زیب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، کابل، ۲۰۱۰.
۹. دراني احمد شاه، د اوسني افغانستان پلار؛ ډاکټر ګندا سینګهـ، ژباړن: د سرمحقق مرستیال نصرالله سوبمن منګل، (دوهم چاپ)، دانش خپرندویه ټولنه، کابل، ۱۳۸۸ لمریز.
۱۰. تاریخ افغانستان بعد از اسلام؛ عبدالحی حبیبی (چاپ سوم)، انتشارات دنیای کتاب، تهران، ۱۳۶۷ شمسي.
۱۱. افغانستان در مسیر تاریخ؛ میر غلام محمد غبار، دولتی مطبعه، کابل، ۱۳۴۶ (۱۹۶۷).
۱۲. ویدي خلک، د هغوی تاریخ او جغرافیه؛ پروفیسور راجېش کوچهار، نوی ډیلي، ۱۹۹۹.
۱۳. د افغانستان ګوښه کړای سوي هندوان؛ ګارډین ورخپاڼه، لندن، د ۲۰۰۹ د اګسټ دوهمه.
۱۴. هندویت په افغانستان کې؛ ویکي پیډیا ویب پاڼه.
۱۵. هندیان په افغانستان کې؛ ویکي پیډیا ویب پاڼه.



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# آیا اوس لا هم نمر پر ځان باندي پرله څرخیږي؟



زه د استرونومي Astronomy زدامند پاته سوئ نه یم. خو د بې کتابونو په هیواد کښي چي و یوه زدامند ته هر څه په لاس ورسي یا ورباندي پېښ سي، هغه د خپلي علمي لوهي (تندي) د ماتولو له پاره لولي. نو ما هم کله نیمګړي او کله ناکله هم څه بشپړ د مځکو او ستورو په اړوند لوستلي دي. په دغو لوستنو کښي پر دې باندي پېښ سوئ وم چي دا نمر نه دئ چي د مځکي پر شاوخوا باندي په څلیرویشتو ساعتونو کښي ګرځیږي، چي پخوا ئې هر چا داسي فکر کاوه. خو نیکولاوس کوپرنیک Kopernikus چي د ۱۴۷۳ او ۱۵۴۳ تر منځ ئې ژوند کړئ دئ، په دې ئې سد ورسېدئ چي دا مځکه ده چي و نمر ته هم پر ځان باندي ګرځیږي او هم په کال کښي د نمر پر شاوخوا باندي ګرځیږي. کوپرنیک جرمن پولینډی ؤ.

تر کوپرنیک څه پنځوس کاله وروسته یو ایټالوی، چي ګالیلو Galileo نومېدئ. ده په فزیک (طبیعت پوهنه) کښي اوز کشفیات کړي دي، ده د لیرلید له پاره د غورس نل څخه لاسي ټلیسکوپ جوړ کړ. ده د نمر په کوره کښي یو تور ټپلئ وموند، ده د آسمان لار پرله پوري وښووله، ده د مشتري اوز سپوږمیاني وموندلې، ده د زحل سیارې پر شاوخوا باندي کړۍ وموندله او هم ئې د کوپرنیک موندنه تائید کړه چي نمر د مځکي په مدار (فلک) کښي مرکزي ځای لري. دی په ۱۶۳۳ع کښي د روم دینایانو ونیوئ چي دا څه جک وهې، ستائې د خدای په کائناتو څه کار. په ده ئې توبه وکښه چي

دا هر څه ئې هسي چټيات ويلي دي. وايي: کله چې ئې دی پر مځکې باندي نسکور کړئ ؤ، او توبه ئې په کښله، وايي، ويل ئې چي دغه مځکه چي په ما سره توبه پر کاږي پر ځان باندي پرله څرخي. دی ئې د رسوايۍ په هغې خادې پوري، چي د ښار په مرکزي ميدان کښې ئې جګه درولې وه وتاړه، او لاروپانو ورباندي توکل چي کله دي بيا کفر کړئ نه وي. ګاليلو چي په ۱۵۶۴ع کښې زېږېدلئ ؤ په ۱۶۴۲ع کښې مړ سو. اروپايي عالمانو ډېري قربانۍ ورکړي دي څو بالآخره ئې و عقل ته له عقيدې څخه آزادي ورواخيستلای سوای.

زه په خپلو نيمګړو لوستنو او مطالعاتو کښې کله چيري پر دې باندي پېښ سوئ نه يم چي چا دي پر ځان باندي د نمر د ګرځېدني په اړوند څه علمي، مشاهدوي، يا بل راز بيان کښلئ وي. زما هيله او غوښتنه له خپلو افغانانو څخه دا ده چي که دوی د انټرنيټ په وسيله، يا هغوی چي په اروپا او امريکا کښې اوسيږي د هغه ځای دائرة المعارف يا کم چا څخه داسي معلومات راکړای سي چي هغه پر ځان باندي د نمر د څرخېدني په اړوند وي. ای زما دغه پوښتنه راجواب کړي چي نمر پر ځان باندي څرخيږي که نه؟ آيا په پخوا کښې نمر پر ځان باندي څرخېدئ، خو آيا اوس نه څرخيږي، که لا اوس هم څرخيږي؟

موږ د دې له پاره څه دليل او ثبوت لرو چي وايو: يو زمان نمر پر خپل ځان باندي څرخېدی، خو ښايي چي اوس دي لا هم څرخيږي. دا چي موږ و نمر ته کتلای نه سو، ځکه ئې نو د څرخېدني ليدنه او احساس کولای هم نه سو. که نه ګانه و ټليسکوپ ته اوز رنګارنګ فيلټرونه وراچول سوي وي، بيا

به نو ګوندي نمر څه په وضاحت سره ليدل سوئ وي او پر ځان باندي د څرخېدني احساس به ئې ګوندي سوئ وي. خو لا بيا به هم دا ګرانه وي چي د څرخښت درک دي ئې په وضاحت سره سوئ وي.

څوک ښايي ووايي: په داسي حال کښې چي نمر د ګاز (غاز) په حالت کښې دئ، نو بيا څنګه پر ځان باندي څرخېدلای سي؟ تاسي به ښايي اوز ځايه اوبه ليدلي وي چي په يوه مرکزي ټکي باندي ګرځيږي چي و دغه ګردښت ته ئې خلګ (ګرداب) يا (چرخاب) وايي. تاسي به ښايي د دوبي او مني يا لا هم د پسرلي په يوه يا بل موسم کښې هوا ليدلې وي چي پرله څرخي. څنګه چي دغي ګرځنده هوا نرۍ - نازکه خاوره پورته کړې وي چي له باد څخه ئې دوړه جوړه کړې وي، نو موږ و دغي څرخنده دوړني هوا ته دوړ - دوړکه وايو او هغو څرخنده اوبو ته بيا بوړ - بوړکه وايو چي نور ئې بوړبوکۍ هم بولي.

که نه ګانه دغه د بوړبوړکي اوبه روڼي - زلالي وای، موږ به دغه بوړبوړکه يا ګردآب ليدلای نه سوای. هم دغسي که په هوا يا باد د خاورو دوړه ګډه نه وای، موږ به دوړ دوړکه هم ليدلای نه سوای. نو هم دغه راز موږ په ټليسکوپونو سر لا هم د نمر ګاز د هغه تور ټپلي پر شاوخوا باندي په څرخ ليدلای نه سو. موږ چي به اوبه او هوا ليدلای نه سو، نو به روښانه اورنی ګاز څنګه د خپل زښې پر شاوخوا باندي په څرخ وليدلای سو.

بل دليل به مي دا وي چي که نه ګانه د نمر ګاز، د هغه تور ټپلي، چي ګاليلو کشف کړای سوای، پر شاوخوا باندي په څرخ نه وای، دغه مځکه چي موږ نن ورباندي اوسېږو، به هم پر ځان باندي په څرخ نه

وای. شپه او ورځ به مو نه لرلای یا به د سپوږمۍ د شپې او ورځې غوندي وای.

دریم دلیل مي دا دئ چي که نه ګانه دغه نمر د خپل تور تپلي پر شاوخوا باندي په ځرخ نه وای، دغه نهه مځکي، یا سیارې، چي له نمر څخه نوږېدلي یا بېلي سوي دي، دوی به هره یوه پر خپل ټاکلي مدار (فلک) باندي د نمر پر شاوخوا باندي نه ګرځېدلای.

بل لا دا هم چي که نمر پر ځان باندي په ځرخ نه وای، هیڅ یوه مځکه یا سیاره به ځني بېله سوې نه وای. خو که به نه ګانه یوه یا بله ځني بېله سوې یا نوږېدلې وای، هغه به د نمر پر شاوخوا باندي په ځرخ نه وای.

بله انګېرنه موږ د نمر د نهو سیارو له پرله پسې لیریوالي او نژدېوالي څخه کولای سو. دا چي نمر ځیني خپلي سیارې خورا لیري غورځولي دي، دلالت پر دې باندي کوي چي له لویه سره څخه نمر په ډیري تېزۍ سره د ځان پر شاوخوا باندي ګرځېدئ. ځکه ئې نو لومړۍ پلوټو Pluto بلله سوې سیاره له ځانه څخه په شدت سره ډېره لیري غورځولې ده. بیا اوز کلونه وروسته ئې دوهمه سیاره چي نیپټون Neptun بلله سوې ده، له ځانه څخه په تېزۍ سره نوږولې ده. خو دوهم لیري ځای ئې دلالت پر دې باندي کوي چي د پر ځان ګرځېدني په شدت او قوت کښي ئې نسبي کمښت پیښ سوئ ؤ.

دغسي هم وار په وار نور او نور کمښت ئې د ځرخېدني په شدت او قوت کښي د میلیونونو کلونو په ترڅ کښي پېښ سوئ دئ. وروستنۍ سیاره چي تر نورو ټولو سیارو و نمر ته ورنژدې او هم ئې تر نورو ټولو وروسته له ځانه څخه غورځولې ده هغه عطارد Merkury دئ. نمر په دغو نهو سیارو او د دوی په وورمیانو سره ځان سپک کړئ دئ. ای خپله جسم یا کتله ئې کمه کړې ده. دا چي کله به بله سیاره هم له ځانه څخه بېله کړي که نه، جواب به ئې باوري نه وي. خو زمان به ئې وایي.

یو بل څه چي پر ویل کېدلای سي هغه دا چي دغه زموږ نمر له هغي خورا لیري آسمان لاري څخه راسوږول سوئ دئ. د لاري په اوږدو کښي به له دء څخه نوري لویي او کوچینۍ کرکنډي (سیارې) هم بېلي سوي وي. دغو مجهولو کرکنډو او بالآخره دغو نهو سیارو و نمر ته په تدریج سره ملونه وراچولي دي او هم دغو دي درولئ دئ. که د دوی جاذبوي ملونه، نه وای، نمر به تر دغه لا ډېر نور هم له آسمان لاري څخه لیري سوئ وای.

هغه نمرونه چي په آسمان لاري کښي خوپ لیدل کیږي په واقعیت کښي یو له بله څخه به لږ تر لږه په داسي واټن څله لیري وي لکه پلوټو چي له نمره څخه لس ګرایه نور هم لیري کړل سي، خو و موږ ته داسي ښکاریږي لکه په دوره کښي خاورین خځري وي.

و چا ته به ښایي داسي پوښتنه ورپیدا کیږي چي دغه د آسمان لاري نمرونه، چي هغوی به هم پر خپلي شاوخوا باندي سیارې لري له کومه سول؟ ای په خپله دغه آسمان لار څنګه پېښناوله ده؟

یو امریکایي پروفیسور چي زما ئې اوس نوم هېر دئ، داسي مفکوره وړاندي کړېده چي له خځرو څخه چي دوی یوء جاذبه لرله، په موا Space کښي یو لوی خوم ځني جوړ سوئ ؤ چي موږ ئې د اوږدو سر او پای لیدلای نه سو. د دغه خوم یو اړخ له بله اړخه څخه

په داسي واټن ليري ؤ، چي که زموږ د شمسي نظام غوندي څه څلور دغسي نظامونه په دغه لوی خوم کښي وای، د خوم له يوء اړخه تر بله اړخه پوري به رسېدلي نه وای.

دغه لوی او خورا اوږد خوم پر ځان باندي په خورا شدت سره په څرخ کښي ؤ. ای پرله څرخېدئ. له دغي تېزی څخه ئې خځري يا کرکنډي اور ګرځېدلي ول. د دغه خوم د تېزی، شدت و داسي اندازې ته ورسېدئ چي نور ئې ځله ټک وهل - دوړه او دانه سو. دا به نو څنګه ځله ټک وهل ول؟ دغه تر تصور دباندي پېښه وه. موږ د زور او شدت څه نځه تصور له دغو نمرونو څخه کولای سو چي په موا (آسمان) کښي ځله خپاره واره دي. ځيني نمرونه ئې لا زموږ تر نمر هم ډېر ليري غورځولي دي. دغه ګڼ شمېر نمرونه چي د شپې له خوا څخه زموږ آسمان په ښايسته دئ، هم له دغي آسمان لاري څخه سېرول سوي دي او دغه هاله چي د اور څرخنده خوم له شدت او قوته څخه ځله چاودلئ او دوړه و دانه سوئ ؤ چي خځري ئې دآسمان نمرونه دي.

ما دغه ليکنه له لويه څخه په داسي هوس پيل کړه چي ګومان مي کاوء چي ښايي زء به لومړی کس يم چي په دې پوهېدلئ يم چي نمر پر خپل ځان باندي پرله څرخيږي او نو ځکه ئې خپلي سيارې هم له ځانه څخه داسي غورځولي دي چي اوس پر دء باندي سره څرخيږي. خو کله چي ما غوښتل له نمره څخه د دء د سيارو واټن وموممم، نو مي يو امريکايي کتاب وکوت. په دغه کتاب کښي ئې واټن په ميل سره ښوولئ ؤ. څنګه چي ما غوښتل په کيلومتر سره مي ښوولئ وي نو مي د دغه مرام له پاره يو جرمنی کتاب Lexikon وکوت. په دغه کتاب کښي ئې خورا مهم معلومات وړاندي کړي دي چي زما هوس ئې هم رابس کړ. دا چي څنګه، زء به ئې موندني او ښووني و تاسو لوستونکو ته دروړاندي کم. څو تاسي هم د کائنات له يوء واقعيته څخه پوهېدلي ياست. دغه په زړء پوري معلومات په يوه (اوډنه) کښي وړاندي کړل سوي دي.

په دغي اوډني کښي به تاسي ووينئ چي شپږ سيارې د مځکي غوندي او ورسره د نمر پر شاوخوا باندي ښی ګرځيږي، خو درې نوري سيارې بيا، لکه پلوتو Pluto، اورانوس Uranus او زهره Venus کيڼ ګرځي دي. دا چي ولي او څنګه داسي پېښه ده، نجومپوهانو به ئې عامل او علت بيان کړئ وي. پېښه يوه ساده پېښه هم نه ده، څنګه داسي پېښېداى سواى. نجومپوهانو چي به هر څه پر ويلي وي له ما سره ئې څرک او اخستيځ نسته. ځکه نو زء و دې ته اړوزم چي د خپلي هېښتيا او پوښتني جواب په خپله ووايم څو و ځان ته مي څه قناعت ورکړئ وي.

دغه د ځينو سيارو پر نمر باندي ښی ګرځېدني او د نورو سيارو يا مځکو پر نمر باندي کيڼ ګرځېدني زء و يوء تصوري واقعيت ته ځير کړم او هغه دا چي دغه هره سياره يا مځکه يو له نمر څخه يو له دې عامله څخه بېله سوې ده چي نمر پر ځان باندي ډېر تېز څرخېدئ. بل مهم عامل به ئې ښايي دا ؤ چي په نمر کښي چاودنه سوې ده. په نمر کښي دغسي چاودنو ځيني سيارې و ښی، خوا ته غورځولي دي. دا ځکه چي د چاودنو او غورځونو سمت ئې و يوې يا بلي خوا ته ؤ. له همدغه اسيته څخه زحل،

مشتري، نیپتون، مریخ، ځکه او عطارد د نمر پر شاوخوا باندي ښی ګرځېدنه لري. خو پلوټو، اورانوس او زهره بیا د نمر له کیڼې خوا څخه ورباندي څرخیږي. نو موږ ئې د دغه ښی او کیڼو ګرځېدنو سیارو له حالته څخه ویلای سو چي دغه هره سیاره له نمره څخه د یوې زوروري چاودني په نتیجه کښې بېله سوې او غورځول سوې ده.

نو په دغو پېښاولو کښي دوو پېښو یا عملیو اغېز ښندلئ دئ. یوه ئې د ځان پر شاوخوا باندي د نمر تېزي وه، چي د میلیونونو کلونو په ترڅ کښي سوکه – سوکه پرله پسې کمه سوې ده. بله پېښه به د هري سیارې سره اړونده د نمر په دننه یا مرکزي تورتېلي کښي زوروره چاودنه وه.

که نمر پر ځان باندي په تېزي، سره نه څرخېدلای دغه نهه سیارې به څني بېلې سوي نه وای او بل دا چي که د نمر په کتله کښي چاودني سوي نه وای، دغه نهه سیارې به ئې له ځانه څخه ایسته غورځولي نه وای.

موږ چي دغه هر څه روښانه ستوري، ای نمرونه، په آسمان یا موا کښي ویشتلي او پاشلي وینو، دغه هم په آسمان لاري کښي له لویو سترو چاودنو څخه راپیدا سوي دي. دغه عملیې یا پېښې له عواملو سره سره مشابه دي.

بله انګېرنه چي موږ د نمر د سیارو له لیریوالي او نژدېوالي څخه کولای سو، هغه به دا وي چي نمر په ابتداء کښي پر خپل ځان باندي په خورا تېزي یا شدت سره ګرځېدئ. ځکه ئې نو لومړی پلوټو تر نورو اتو سیارو ډېره لیري غورځولې ده. څو له کناورز لیکسیکون Knaurs Lexikon څخه مي د سیارو فاصلې درکړي وي، هورې پر دې باندي پېښې سوم چي وایي نمر په ۲۵، ۸۳ ورځو کښي پر ځان باندي یوه پلا څرخیږي.

ما ته د ډېري هېښتیا پېښه دا ده چي دوی دا څنګه معلومه کړای سوای چي نمر په ۸۳،۲۵ ورځو کښي پر ځان باندي یوه پلا ګرځېږي؟ که به داسې وي نو ئې څرخېدنه خورا ډېره سوکه سوې ده. په خپله دغه نهه لویې سیارې چي نمر له خپله ځانه څخه ایسته غورځولي دي هم دلالت پر دې باندي کوي چي د نمر د څخېدني تېزوالی او شدت د زمانې په تېرېدو سره ډېر کم سوئ دئ. څه چي پلوټو ئې له ځانه څخه خورا لیري غورځولې ده، خو عطارد ئې بیا له ځانه څخه لږ لیري غورځولئ دئ. زه به دغه د نمر د سیارو واټن له څینو نورو پېژندنو سره ئې له یادکړي کتابه څخه درکم.

که نه ګانه د میلیونونو کلونو په ترڅ کښي د نمر د پر ځان ګرځېدني شتاب په تدریج سره سوکه سوئ نه وای، ټولې سیارې به د نمر پر شاوخوا باندي پر یوه مدار باندي ګرځېدلای. ای دوی به له نمر څخه هم هغه یو واټن لرلای. خو اوس بېلابېل واټنونه لري. څو ما ئې دغه واټنونه ښوولي وي، و یوه امریکایي کتاب (ډیکشنري) ته مي مراجعه وکړه چي واټن ئې په میل سره ښاوه. ځکه مي نو و یوه جرمني کتاب ته رجوع وکړه چي واټن په کیلومتر (کلم) سره ښووي (کناورز لیکسیکون).

| | نمر | عطارد | زهره | ځمکه | وورمه |
|---|---|---|---|---|---|
| د قطر اوږدوالی | ۱،۳۹۲،۰۰ | ۴،۸۷۸ | ۱۲،۱۰۴ | ۱۲،۷۵٦ | ۳،۴۷٦ |
| غونداری | ۳۳۳،۰۰ | ۰،۰۵۵ | ۰،۸۱۵ | ۱ | ۰،۰۱۲ |
| حجم (لوی والئ) | ۱،۳۰٦،۰۰۰ | ۰،۰٦ | ۰،۸۸ | ۱ | ۰،۰۲۰ |
| کروږوالئ (تراکم) | ۱،۴۱ ۰ | ۵،۴۳ ۰ | ۵،۲۴ ۰ | ۵،۵۲ ۰،۰۰۳ | ۳،۳۴ ۰ |
| د خور دروندوالئ | ۲۷،۹ | ۰،۳۷ | ۰،۸۸ | ۱ | ۰،۱٦ |
| د وورمیانو شمېر | – | – | – | ۱ | – |
| له نمر څخه دېرنی لیري والی میلیون کلم | – | ٦۹،۷ | ۱۰۹ | ۱۵۲،۱ | – |
| له نمر څخه لږنی لیري والئ میلیون کلم | – | ۵٪،۹ | ۱۰۸،۲ | ۱۴۹،٦ | – |
| پرخان څرخېدنه | ۲۵،۳۸ ورځي | ۵۸،۳۵ورځي | ۲۴۳ ورځي کین ګرځ | ۲۳ ساعته،۵٦ شببې، ۴ ثانیې | ۲۷،۳۲ ورځي |
| دوراني ګرځېدنه د نمر پر شاوخوا | – | ۸۸ورځي | ۲۲۴،۷ ورځي | ۳٦۵،۲٦ ورځي | – |
| د ګرځېدني وسطي سرعت کلم/ ثانیه | – | ۴۹،۹ | ۳۵ | ۲۹،۸ | – |
| د مدار له مستوي څخه میلان | – | ۲۸ | ۳ | ۲۷ ۲۳ | – |
| د نمر له مستوي څخه د مدار میلان | – | ۷،۰۱ | ۳،۳۹ | ۰ | ۵،۱۵ |

| | مریخ | مشتري | زحل کیوان | اورانوس | نپتون | پلوتو |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د قطر اوږدوالی | ٦،٧٨٧ | ١۴٢،٧٩٦ | ١٢٠،٠٠٠ | ٥٠،٨٠٠ | ۴٨،٦٠٠ | ٥،٨٠٠ |
| غونډارئ | ٠،١٠٧ | ٣١٧،٨ | ٩٥،٢ | ١۴،٥ | ١٧،٢ | ٠،٠٠٣ |
| حجم (لوی والئ) | ١،١٥٠ | ١،٣١٩ | ٧٥١ | ٦٢ | ٥۴ | ٠،٠١٥٧ |
| کروږوالئ (تراکم) | ٣،٩۴<br>٠،٠٠٥ | ١،٣٣<br>٠،٠٦٥ | ٠،٧٠<br>٠،١٠٦ | ١،٣٠<br>٠،٠٣٠ | ١،٧٦<br>٠،٠٣٦ | ١،١٧<br>؟ |
| د خور دروندوالئ | ٠،٣٨ | ٢،٦۴ | ١،١٥ | ١،١٧ | ١،١٨ | ٠،۴٥ |
| د ووږمیانو شمېر | ٢ | ١٧ | ١٧ | ٥ | ٢ | ١ |
| له نمر څخه د ېرنی لیري والی میلیون کلم | ٢۴٩،١ | ٨١٥،٧ | ١،٥٠٧ | ٣،٠٠۴ | ۴،٥٣٧ | ٧،٣٧٥ |
| له نمر څخه لږنی لیري والئ میلیون کلم | ٢٢٧،٩ | ٧٧٨،٣ | ١،۴٢٧ | ٢،٨٦٩،٦ | ۴،۴٩٦،٦ | ٥،٩٠٠ |
| پر ځان څرخېدنه | ٢۴ ساعته ٣٧شېبې ٢٣ ثانیې | ٩ساعته ٥٠ شېبې ٣٠ ثانیې | ١٠ ساعته ١۴ شېبې | ١١ ساعته کیڼ گرځ | ١٦ ساعته | ٦ ورځې، ٩ ساعته کیڼ گرځ |
| دوراني گرځېدنه د نمر پر شاوخوا | ٦٨٧ ورځې | ١١،٨٦ کلونه | ٢٩،۴٦ کلونه | ٨۴،٠١ کلونه | ١٦۴،٨ کلونه | ٢۴٧،٧ کلونه |
| د گرځېدني وسطي سرعت کلم/ ثانیه | ٢۴،١ | ٩،٦ | ٩،٦ | ٦،٨ | ٥،۴ | ۴،٧ |
| د مدار له مستوي څخه میلان | ٢٣° ٥٩١ | ٣° ٥ | ٢٦° ۴۴ | ٨٢ ٥ | ٢٨° ۴٨ | ؟ |
| د نمر له مستوي څخه د مدار میلان | ١،٨٥ | ١،٣٠° | ٢،۴٨° | ٠،٧٧° | ٠،١٧٧° | ١٧،١٣° |

له کناورز لیکسیکون څخه اخستنه Knaurs Lexikon

له دغو نهو سيارو (مځکو) څخه يوازې زموږ د مځکې کوره ده چې په مساعدې فاصلې سره له لمر څخه ليرې ده، او نو ځکه هم د زرغون پاڼو (نباتاتو)، حيواناتو، او وګړو ژوندون پکښې پيدا سوئ دئ. نورې مځکې يا سيارې و نمر ته ورنژدې دي، نو د نمر د ډېرې تودوخې (حرارت) له اسيته څخه هورې ژوندون پيدا سوئ نه دئ يا ځيني سيارې (مځکې) له نمر څخه ډېرې ليرې دي او له ډېرې يخنۍ (برودت) له اسيته څخه ژوند پکښې پيدا سوئ نه دئ.

د امريکا د متحده ايالاتو له صنعتي مملکت څخه ووړمکياني Satellites و سپوږمۍ او مريخ ته لېږل سوي دي. په سپوږمۍ (ووږمۍ) کښې ځکه د ژوندانه اوليه عنصر اوبه نسته چې د مځکې پر شاوخوا باندې څرخېږي. دا د مياشتي منځنۍ لس ورځي له نمر څخه ليرې وي، خو لومړنۍ لس ورځي او د مياشتي وروستنۍ لس ورځي و نمر ته ورنژدې وي. ځکه نو د ليريوالي او نژدېوالي له اسيته څخه پر سپوږمۍ باندې ژوند نسته. که څه هم دا د مځکې له کورې څخه بېله سوې ده.

که څه هم په لومړي سر کښې ووږمې (سپوږمۍ) اوبه لرلې، او هغه پر دې باندې دلالت کوي چې دا په ابتداء کښې و مځکې ته ورنژدې وه خو په وروسته کښې و دغه اوسني ليريوالي ته رسېدلې ده او نو هم ئې د اوبو بحيره وچه سوې ده. مانا دا د مياشتي اوز ورځي و نمر ته ډېره ورنژدې وي او د پنځلسم په شپه و ورځ کښې ډېره ځني ليرې وي، نو ووږمه، د مياشتي په سر او پای کښې و نمر ته ورنژدې کېږي. او کله چې سپوږمۍ سي له نمر څخه ليرې کېږي. نو چې د يخنۍ او تودوخي له اسيته څخه پر ووږمۍ (سپوږمۍ) باندې ژوند نسته نو پر نورو سيارو باندې به د ژوندانه بولګه او آثار لا هم نه وي. ولي چې و نمر ته ورنژدې يا لا ځني ليرې دي.

د امريکا د متحده ايالاتو مصنوعي ووړمکۍ Satellite په اوو مياشتو کښې و مريخ ته ورسېدله، او هورې هم يخې (کنګل) سوه. نو که انسان په خپل علميت کښې نور هم پياوړئ سي او وکولای سي چې و نژدې شمسي نظام ته ووړمکۍ ورواستوي، او د هغه نمر پر داسي سياره (مځکې) باندې وګرځي يا کښته سي چې له خپل نمر څخه ئې واټن په داسي اندازې سره وي لکه زموږ مځکه چې ئې له نمر څخه لري. ښايي هورې به ژوندون وي.

په بل شمسي نظام کښې له مځکې سره ځرمه واټن لرونکي سيارې ته به سيټلايټ ښايي په شل و دېرش ورځي کښې ورسيږي. نو له هغې سيارې څخه به ګوندي زموږ غوندي د وحشت او يا مدنيت انځورونه (تصويرونه) راواستولای سي.

ترڅو چې انسان د صنعتي پياوړتيا و يوې دغسي مرحلې ته رسېږي، اوز نسلونه زمانه به پر تېره سوې وي. دغه خوب و خيال به ګوندي هاله رشتيا سوئ وي چې بشريت له تسليحاتي سيالۍ (مسابقې) څخه په فهم سره لاس اخستئ وي. د تاريخ په اوږدو کښې وحشت ډېر مدنيتونه تباه کړي دي يا ځيني په خپل ځان کښې وراسته او خوړين سوي دي.

دا چې له مځکې څخه ووړمکۍ ته په بل شمسي نظام کښې ځنګه لارښوونه کيږي، فهم او تخنيک ئې د هغه زمان په

پوهانو پوري اړه لري. اوس چې ئې و مریخ (مارس) ته لاربښوونه کولای سي، ښایي په بل شمسي نظام کښې به هم دغسي کار وکړای سي.
دوی دغه کار له دوو لارو څخه کولای سي. یوه لار ئې د پیاوړي لیرلیدوني Telescope په وسیله سره کولای سي چې د هغه له خوا څخه به الیکترونیک اشارات وراستول کیږي او د دغو په وسیله سره به لاربښوونه ورته کوي.
بله وسیله به ئې ځاني حساسیت وي چې داسي آلات به پکښې نصب وي چې له ډېري ګرمۍ او له ډېري سړ ګۍ څخه به ئې له ورنژدې کېدني څخه ممانعت کوي نو پر داسي خوا یا سماوي جرم ته بهٔ ئې بیایي چې هوا ئې معتدله وي. له نظري او تصوري پلوه څخه دغسي آلات او وسایل پکښې نصبول خورا معقوله ښایېدنه لري.
له دغسي ووړمکۍ سره به هم په هر صورت کښې لیرلیدونکي وسایل د الیکترونیک څپو په وسیله سره هم مرسته کیږي. انسان چې ووړمۍ (سپوږمۍ) ته او مریخ (مارس) ته ووړمکیاني موفقانه استولي دي خو دا امید سته چې و بل شمسي نظام ته به ئې هم استولای سي او هم به د هغه نظام د معتدلي هوا لرونکي پر مخ باندي د موجوداتو عکسونه را استولای سي. خو دا چې واټن ئې اوږد دئ، کلونه – کلونه به پر لاري وي.
یوه خوا ئې دا، بله ئې دا ده چې د امریکا متحده ایالاتو په موا کښې هبل Habel لیرلیدونکی په موا کښې د مځکې تر فضا دباندي فعال کړئ دئ. دوی د دغه ټلیسکوپ په وسیله سره په ډېره لیري موا کښې دوې نوري آسماني لاري موندلي دي.
خو چا ئې دا ښوولې نه ده چې دغه آسمان لاري هم لکه دغه زموږ چې ئې وینو دغسي څله چاودلي دي، که د یوې عظیمي استوانې یا خوم غونډي پرله پوري دي.
یوه لا بله مهمه ئې دا ده چې دغه هبل ټلیسکوپ چې په خورا لیري موا کښې دوې نوري آسمان لاري کشف کړي دي نو آیا دغه و موږ ته نژدې نمرونو او سیارې ئې موندلي نه دي؟ دا چې هر نمر ئې څو سیارې لري؟ هغه له نمر څخه واټن ئې لا بله پېښنه ده.
که دغه اوسنی هبل ټلیسکوپ و نه کړای سي چې د بل شمسي نظام پر هغې سیارې باندي چې واټن ئې له خپل نمر څخه زموږ د مځکې په اندازه وي د ژوندانه څرک وایستلای سي د بل کله لا پیاوړئ او دقیق ټلیسکوپ به دغه کار ګوندي وکړای سي.
دمخه تر دې چې چا عملاً ووړمکۍ ورلېږلې وي، لومړی ئې باید نظري څرک ایستلئ وي چې هورې د ژوندانه کابو سته که نه. که به هورې پر یوې یا بلې سیارې باندي ژوندون وي، بیا دي ئې د نورو موندنو د لارو چارو تلاښ وکړل سي.
لکه نور نمرونه، سیارې او ووړمیاني ئې زموږ مځکه هم د دوی غونډي کوروي ده. زموږ مځکه هم د نورو اجرامو په څېر ختیځ او لوېدیځ، شمال او سوهېل نه لري. دغه هر څه عندي او فرضي دي. انسانانو دغسي درک کړي او فهمولي دي.
د کال په یوه نیمایي کښې مځکه د نمر و یوې خوا ته وي چې موږ به ئې په فرضي توګه سره ختیځ وبولو، خو د کال په بل نیمایي کښې بیا مځکه د نمر و بلې خوا ته وي چې دغه خوا ئې نو باید لوېدیځ بلله سوې وي. خو موږ د کال په هر موسم کښې

نمر و هغې خوا ته د راختلو په وخت کښې وینو چې موږ ئې ختیځ بولو. ای د مځکې و هرې خوا ته چې نمر څرک وي موږ ئې ختیځ بولو، او و هرې خوا ته چې د مځکې نمر نهامیږي هغې خوا ته لوېدیځ وایو. حال دا چې نمر به ځای پر ځای وي. نمر نه راخېژي او نه لوېږي. دا مځکه ده چې و خپلې کیڼې خوا ته ورته ګرځي. دغه څرخ ئې هم نسبي دئ. انسان له خپل دریځ څخه ورته وضع کړئ دئ.

بل دا چې مځکه شمال و جنوب نه لري. په نقشونو او تصویرونو کښې اسیا او اروپا د مځکې د کورې و شمال ته ښوول کیږي، خو د افریقا او استرلیا او جنوبي امریکا ئې و سوهېل ته ښوول کیږي یا داسي بلل کیږي. دغه بلنه ئې هم نسبي ده.

ای شمال د کورې لوړه خوا نه ده او سوهېل ئې کښته خوا نه ده. خو خلګ ئې داسي پېژني، او دغه پېژندنه ئې نسبي ده. بل دا چې و موږ ته دغسي په وضعي نومونو سره راښوول سوې ده.دا ځکه چې کشفیات او تعینات ئې داروپایانو له خوا څخه سوي دي.

بل لا دا چې موږ چې د نمر و هرې خوا ته یو، د نمر ختو خوا مو ختیځ ده او نمر لوېدو خوا مو لوېدیځ ده، دغه ترتیب ئې په ترسیم سره ښه سم ښوول کېدای سي.

دغه په خپله څرخنده مځکه ده چې ساکن نمر پر خپلې شاوخوا باندې څرخنده ښووي. ساکن په دې مانا سره چې نور و یوې یا بلې خوا ته له خپله ځایه څخه نه لیرې کېږي او که نه ګانه له یوه ځایه څخه و بل ځای یا خوا ته تلئ نو به خپل ټول نظام ورسره بیایي. خو نظر د نورو نمرونو یا ستورو له دریځ څخه داسي ایسي چې نمر و هیڅ خوا ته نه ځي. یوازې ځای پر ځای باندې سره په څرخ کښې دئ. خو دغه څرخېدنه ئې تر پخوا ډېره سوکه ګرځېدلای سي. له ورځو څخه به خود مراد شپه ورځ وي. له ما سره اصلي اخستیځ نسته چې بیا ئې دغه شپیان لیرې کړئ وای، څو نه ګانه ساعتونه، نه وي.

## په نمر کښې چاودنې:

څه وخت تر مخه مې له رادیو څخه واورېدل چې کومې رصدوسیلې یا Telescope ښوولې وه چې د نمر په کوره کښې دوې چاودنې سوې دي. یوه ئې څه کوچینۍ چاودنه وه، او بله ئې څه لویه چاودنه وه. دا ئې هم ویلې ول چې د دغې لویې چاودنې روڼا د مځکې و کورې ته رسېدلې او د افریقا پر شمال باندې موښتې وه. دغې پېښې هیڅ راز ورانې – ویجاړې له ځان سره نه لرلې.

زما هېښتیا په دې کښې وه چې د هر څه تر چاودنې وروسته، د هغې اثرات او اجزاء ځله خپاره – واره او پاشل کیږي. نو د دغې وړانګې څنګه سمې سیده تر مځکې پورې راورسېدلې؟ دا خو داسي ایسي لکه د یوه توپ غوندې لولې څخه چې و مځکې ته راسوړول سوې وې.

بله هېښنده پوښتنه مې دا ده چې هغه چاودنه له څه څخه ولې پېښه سوې وه؟ علت او عامل به ئې څه وُ؟ له څه څخه ولې پېښه سوې ده؟

بله پوښتنه لا هم دا ده چې دغه چاودنه په هغه منځنې تور ټپلې کښې وه که ئې په ځل و بل ګازي برخه کښې وه؟ په ګازي برخه کښې که به وه، نو آیا په هیلیم کښېځ وه که په هایدروجن کښې وه؟ یا که به

په هیلیم او هایدروجن دواړو کښې وه؟ زه ګومان کوم چې د هغه تور تیپلي په پوه سوړه کښې چې به وه. دا ځکه چې سېرول سوي اورلمبې ئې سمت او امتداد لاره. آیا که دغه اورنۍ لمبه پر یوه ښار یا ځنګله باندي موښتې وای، اور به ئې بل کړئ او سوځنه به ئې کړې وای، که به دا صرف یوه رڼا یا وړانګه وه.

دا داسي مثال لري لکه په اوره‌ني غره کښې چې چاودني کیږي، خو توپیر به ئې دا وي چې د نمر چاودني نسبت و اوره ني غره ته زیات شدت لري او د اوره‌ني غره چاودني کمزوري دي.

که دغه پوښتني څوک په انټرنیټ کښې وړاندي کړي او جوابونه ئې خپاره کړي، د خلګو له پوهاوي سره به ئې مرسته کړې وي.

یوه ستره پېښاوله چې بیان ئې له موضوع سره اړه لري، یادونه به ئې خوشي او بې ځایه نه وي.

په هغه کال چې شورویانو د جنوری پر اوله پر افغانستان باندي یرغل وکړ، درې میاشتي وروسته ما د ادبیاتو او اجتماعي علومو د فاکولتې د تاریخ پر څلرم صنف باندي د بشرپوهني درس لاره. زه چې د حمل پر دوهمه ورځ د لومړۍ پلا له پاره و صنف ته ورغلم اوز ګستنر پانې مي و زدامندانو ته ورووېشلې.

په دغه ګړي کښې چې ما غوښتل په درس ورکولو مي پیل کړئ وي په وړاندي قطار کښې شپږ - اووه زدامندان ناست ول. دوی ویل: لومړی زموږ دوې پوښتني راجواب که، تر دغه وروسته به نو، نور درس راته وایې.

ما ګومان کاوه چې دوی به عادي او ساده پوښتني لري، خو پوښتنو ئې زما په بدن کښې وربښکي راوځغلولې. د دوی لومړۍ پوښتنه دا وه چې خدای سته که نسته؟ دوهمه پوښتنه ئې داسي وه: آیا انسان له ختو څخه جوړ کړه سوئ دئ که ئې د بیزو له نسله څخه وده موندلې ده. ما ورته وویل چې لومړۍ پوښتنه مو په ما پوري اړه نه لري، او د دوهمي پوښتني جواب مو په یوه ورځ، یوه اونۍ، یوه میاشت کښې ویل کېدلای نه سي. دغه اسناد او شواهد غواړي. دغه درس زه په څلورو کالو کښې د فلسفې او اجتماعي علومو په ځانګه کښې له اوله څخه تر څلرمه صنفه پوري ورته وایم. نو په یوه میاشت کښې ئې خلاصه کول امکان نه لري. که به ساده او خلاصه کړل سي، وچا ته به ئې فهم او قناعت ورحاصل سوي نه وي.

دوی د خپلي لومړنۍ پوښتني پر جواب غوښتلو باندي ټینګار کاوه او ویل ئې چې دغه نه وي درس به هم نه وي.

ما ورته وویل چې زه به ئې په وګړیزه ژبه یا عامیانه توګه سره ګوندي درته خلاصه کړای سم. د څرګندوني په توګه پر موږ باندي نمر راوخېژي، ګهیز سي. ځانښت سي، غرمه سي، لرمل سي، برمل سي (تره غونئ یا ښام سي)، نمر ولوېږي او توره شپه سي. موږ په وګړیزه توګه سره داسي پوهېږو چې نمر د مځکي پر شاوخوا باندي څرخیږي.

دغسي هم پسرلی سي، دوبئ سي، منئ سي، او ژمئ سي. پوهان وایي: چې دغه د نمر پر شاوخوا باندي د مځکي له ګرځېدني څخه دغه څلور فصلونه پیدا کیږي. د مځکي پر مخ باندي یا سوړوالئ یا تودوالئ ډېر سي.

اوس مغزنه پوښتنه دا ده چي دغه لويه او درنه مځکه چي دروندوالئ او وزن به ئې اوز ترېليونه ټنه وي. دغه څنګه په موا کښې ولي او څنګه پر ځان او نمر باندې په څرخ ده؟ دا دوغنده درنده مځکه په يوه مزي يا ځنځير سره له آسمان څخه ځړېږي، يا که لا د بلي خوا څخه يوه اوسپنيزه اچه يا ستون تر لاندي دئ؟ پوهان وايي چي دغسي څه هيڅ نسته. نو دغسي درنده مځکه ولي په طلسم يا ميکنيزم سره په بې دغه سر ؤ پايه موا کښې په څرخنده حرکت کښې ده؟ له دغه فهم او مشاهداتو څخه ئې عاقل انسان پوهېږي چي په کائنات کښې هرومرو يو قدرت سته.

پوهانو دغه قدرت ته له خپلو بېلابېلو علمي او مسلکي نونو يا نوني څخه کتلي دي. نو ځيني وايي په کائنات کښې يو سيستم وجود لري، څوک ئې دهر بولي، ځيني ئې بيا وايي چي هر څه د يوه قانون له مخي څخه سره په ښور کښې دي، يا د سکون په حالت کښې دي. ځيني پوهان بيا و دغه هر څه ته د سايبرنيټکس نوم ورکوي. دغه يو داسي ميکنيزم دئ چي که په يوه څنډه يا خوا کښې ويجاړي پېښه سي دغه سيستم هغه تغيرات په خپله اصلاح کوي. څوک بيا دغه يو نظام بولي چي د خپل ځان نظم په خپله ساتي. هره بې نظمي چي پکښې پېښه سي، هغه په خپله اصلاح کوي. دغه چي پوهان ئې يو څه او بل څه بولي نور ئې بيا خداى بولي.

تاسي هم له خپله فهمه سره سم خپل قضاوت او حکم په خپله کولاى سئ.

ځيني افسانې مو تاريخي يا تر تاريخ دمخه اساس او کرښپل لري. ډېر اسانه کار دا ؤ چي د خپلو نيکه ګانو او مشرانو بتان يا مجسمې ئې له ختو څخه جوړي کړي وي. چيري چي به وني پيدا کېدلې، له لرګي څخه ئې سکوښتلي دي. کله چي په ښارونو کښې فيلز ويلي کړئ دئ، دوى خپل نيکه ګان له اوسپنې، سسو، ژړو او آن چي له زرو څخه لا جوړ کړي ول.

کله چي ډاکټر حسن کاکړ ونغوړېدئ چي زه د تاريخ پر څلرم صنف درس لرم. دء په خورا هېښتيا سره پوښتنه راڅخه وکړه چي دوى دي و درس ورکولو ته پرېږدي؟

ما ورته وويل چي په لومړيو دوو – درو ورځو کښې ئې څه اخلال کاوه. اوس ئې آن منلئ دئ. و دء ته يوه ورځ چي زه حاضر وم د څلرم صنف يو زدامند ورته راغلئ چي استاده و درس ته راځې، که موږ ولاړ سو؟ دء رخصت ورکړ. دا هم بايد وويل سي چي په دغو ورځو کښې پوهنتون امنيت بايللئ ؤ. د فلسفې او اجتماعي علومو په لومړني صنف کښې يوه ورځ له درو پنځوس کسانو څخه درې نجوني او دوه هلکان راته ناست ول. ما پوښتنه څني وکړه چي هغه نور همصنفان مو چيري دي؟ دوى راته وويل چي هغوى راغلي نه دي. ما ورته وويل چي نو تاسي ولي راغلي ياست؟ په دغه ترڅ کښې يوه زدامند د کتابونو له بکس څخه يوه توپکچه راوکښه او د چوکۍ د ليکني پر پله ئې راته کښېښووله.

ما ورته وويل چي درو پنځوس زدامندان او زدامنداني مو نسته و پنځو کسانو ته نو زه هم درس نه وايم. ورځئ رخصت ياست. په سبا ئې له رياست څخه استعلام راته کښېښاوه، چي دوه زدامندان حاضر وي هم به زه درس ورکوم. په کابل او پوهنتون کښې هغه زما وروستنۍ ورځ وه. استعلام مي ور امضاء نه کړ.

*******



څېړندوی عبدالغفور لېوال

# شهید پتیال او ځوانه رهبري

افغانستان تر بحران وروسته داسې یو هېواد دئ، چې د نفوس تر نیمایي ډېره برخه ئې ځوانان دي. دا خو شوه د عمر خبره، خو په ټولنپوهنیزه او فکري محاسبه کي ځوان یوازې په عمر نه دئ، بلکي هر هغه شخص ځوان ګڼل کېږي، چي د نن او سبا د جوړېدو له پاره عمل او فکر کړای شي، هر هغه فعال شخصیت، چي پرله پسې ناهیلیو یوازي د ماضي په حسرت کي نه وي ډوب کړی او په نوستالژیکه هدیره کي نه وي ښخ.

په افغاني ټولنه کي هغه خلک زاړه، سولیدلي او وراسته ګڼل کېږي، چي پر اولس د ځان تپلو له پاره د وسلو، خیر نو پیسو، ویري خپرولو او د پخوانیو لاپوشاپو په زور هر څه په خپل انحصار کي ساتي او د ځوان بشري ځواک توانمندي ودي ته نه پرېږدي. په افغانستان کي د همدې زاړه او وراسته نسل او وینښ ځوان نسل تر منځ سیالي او مبارزې ته اړتیا سته. کله چي وایو (زوړ نسل) دا زموږ مهربانه او تجربه لرونکي پلرونه اومشران نه دي، بلکي هغه زنګ وهلي ذهنیتونه دي، چي د هېواد پرمختګ نه شي زغملای، ځکه له پرمختګ سره د دوی د شخصیتونو ختېین بوتان ماتېږي.

په افغانستان کي تېري یوې نیمي لسیزې ځوان نسل ته د رهبرۍ لار ور نه کړای شوه، ځکه د ټوپک، پاټک او کوټک نسل د ځوان نسل له پرمختګ څخه تر هر بل څه ډېر وېرېده، همدغي وېري د عبدالقدیم پتیال په څېر ځوانۍ هم ورېبلې، چي د ځواني رهبرۍ یوه غوره بېلګه ئې ګڼلې وه. موږ د ځوان نسل یوې ډاینامیکي رهبرۍ ته اړتیا لرو، چي له

بومي اخلاقو او افغاني دود دستور سره سم د خپلو مشرانو درناوی وکړي، لارښوونو ته ئې غوږ ونیسي، د مشرۍ پر ښکلي تخت ئې کښېنوي، هر سهار ئې لاسونه ورښکل کړي، د خیر ښېګڼې، روغي جوړي، زغم و تجربې څخه ئې ګټه پورته کړي، خو نور نو د رهبرۍ، انسجام، سمون، پرمختګ، ویښتیا، روښانتیا او بدلون ټولو منډو رامنډو ته په خپله ملا وتړي. د داسي ځواني رهبرۍ یوه بېلګه شهید پتیال وو.

پر ځواني رهبرۍ ځکه باور کولای شئ، چي دوه ماډلونه ستاسو په مخکي پراته دي:

لومړی ـ د ټوپک او وژنو د نسل یوه مشهوره څېره در په یاد کړئ، چي تر مړیني وروسته څومره توره پانګه، غصب کړی جایداد، وېره او بدي خاطرې ورڅخه پاته دي؟ د څومره خلکو د قتل و ځوروني بدۍ ورله غاړي وې؟

دوهم ـ عبدالقدیم پتیال د ځواني رهبرۍ په استازیتوب؛ کله چي شهید سو، موږ څو تنه په لومړیو ورځو کي کندهار ته راغلو، یو څه پیسې ئې کورنۍ ته له کابل څخه مرسته شوې وه، دلته چا راته وویل: چي کوم ولایتي چارواکي ئې کورنۍ ته خوراکي توکي وراستولي ول، چي د څو ورځو شومه ئې پرې وشي، د فاتحې په ورځ ئې ولایتي دوستانو له حکومته غوښتل چي که ئې پاته شوي کورنۍ ته د کوم کور غم وکړي، وروستی ځل مي چي ولیده، نو راته ویل یې: د کور خاوند په تنګ کړی یم، په دې ورځو کي په نوي کرایي کور پسي ګرځم.

خو د پتیال فقر د هغه میراث نه وو، له دغه ځوان رهبر څخه کتابونه، لیکني، شعرونه، قلمي نسخې او پرېمانه معنوي خاطرې هم راپاته دي. همزولو کادرونو ئې پر شهادت اوښکې بهولې او دا دئ نن ئې موږ لمانځو، همدومره توپیر د وراسته او ځوان نسل د رهبرانو تر منځ بس نه دئ؟

شهید پتیال یو فکر وو، ځکه ئې د ځواني رهبرۍ له پاره ورتیا ورخپله کړې وه، هغوی چي فکر نه لري، خپله برتري د زور او زرو په مرسته پر خلکو تپي، خو فکري رهبران په خلکو کي د محبوبیت پر زینو هسکېږي. زه ولي وایم، چي شهید پتیال یو فکر وو؟ زما او د هغه هره شپنۍ ناسته چي کله خو به تر ملا اذانه هم ورسېده پر همدې تېرېده، چي د تحجر کومې زولنې مو د اولس پښو ته ورغورځول شوي دي، چي پرمختګ ته ئې نه پرېږدي، د ځواني رهبرۍ یوه ځانګړنه به دروښیم: په ټوله نړۍ کي ځوانه رهبري د ستونزو د ریښې پېژندني، د حللارو د تشخیص، د عمل کولو د میکانیزمونو او متشکل و منظم عمل ته د ورننوتلو پراوونه وهي، په دې توګه د هر ډول پېښېدونکي کړکېچ مخنیوی وار له مخه کولای شي او ټول پام ئې د راتلونکي پر جوړولو متمرکز وي. د ورستې رهبرۍ عادت دا دئ، چي بحران نه شي پېشبیني کولای، په حللارو ئې نه وي خبر او هر کله چي بحران پېښ شي، بیا د ورستې زمانې تش په نامه رهبران په منډو رامنډو سر شي.

پاته په (۵۹) مخ کي



عبدالنافع ثنا

# د پتیال د شاعرۍ عمده ځانګړتیاوې



**لنډیز:**

ارواښاد پتیال په کندهار کې د نوي نسل له سرغنه شاعرانو څخه وو. هغه په ډېر لنډ وخت کې د هیواد په کچه د یو منلي شاعر په توګه وپېژندل سو. دا چې د هغه په شعر کې کومې څرګندې ځانګړنې او زور وو چې هغه ئې په دومره تانده ځواني کې د شهرت لویو پوړو ته ورساوه، په راتلونکو کرښو کې په لنډ ډول کتنه ورته کوو.

**پېژندنه:**

شاعري هغه هنر دئ چې د علم، تجربې، تخیلي ځواک، حواسو او عاطفې بحرونه ئې باید خړوب کړي. لکه چې مشهور ادبي تیوریسټ لورنس پیراین په خپل اثر (د شعر عناصر) کې وایي: د ادبیاتو وظیفه د تجربې لېږد دئ او شاعري د ادبیاتو هغه ژانر دئ چې ډېري خبري په لنډو ټکو کې بیانوي. نو د دې له پاره چې یوه تجربه ولېږدول سي او یا بیان کړل سي، اړینه ده چې شاعر په شالید کې د تجربو یوه لویه پانګه له ځان سره ولري. تجربې اړینه نه ده چې ټولي دي شخصاً شاعر تر سره کړي وي بلکې دا کېدلای سي د معلوماتو په شکل د نورو تجربې وي او یا عملي نه بلکې ذهني او تخیلي تجربې وي. له دې راوروسته اړینه ده چې شاعر ډېري خبري په لنډو ټکو کې وکړي. په اصطلاح بحر په پیمانه کې وړاندي کړي، نو هغه وخت ځینو اوزارو ته اړتیا پیدا کوي چې هغه لفظي او معنوي صنعتونه دي. شاعر مجبور وي چې له سمبولونو، استعارو، کنایو او داسي نورو اوزارو څخه کومک واخلي.

ځیني وختونه شاعران د صنعتونو په خوند کې دومره غرق سي چې په ځان خبر نه وي خو د ده ټوله شاعري د دې پر ځای چې تجربه او پیغام ولېږدوي یوازې د دې صفتونو په لوبولو او یا هم د ښاغلي جهاني په وینا یوازې ځان ته د خلکو هیښولو په بازیو تېر سوی وي. دلته د هنر د هنر له پاره او هنر د پیغام له پاره بحث راپورته کیږي. په هره زمانه کې بې شمېره خلک شعرونه وایي، ځیني ئې ژر مشهور او مقبول کېږي او ځیني ئې د ژوند تر پایه هم اورېدونکي پیدا نه کړي. ځیني د تاریخ پر پاڼو ثبت سي او نور د اوبو پر سر د کرښو غوندي د تاریخ له حافظې څخه وایستل سي.

شعر که شعار، شعر که خطابه، شعر که نظم ټول هغه بحثونه دي چې اکثراً شاعران هم په ناخودآگاه ډول پکښې ورک وي. دلته د اروانښاد پټیال شاعرۍ ته لنډه کتنه کوو چې هغه کومي ځانګړني وې چې ښاغلی پټیال ئې په ډېر لنډ وخت کې مشهور او محبوب وګرځاوه.

## آساني او عام فهمي:

بریالی شعر هغه دئ چې شاعر او اورېدونکی بې له کومه خنډه سره وصل کړي. شعر هغه وخت هنري پدیده ده چې اورېدونکی او یا لوستونکی خوند ځني واخلي. که چیري شاعر داسي څه ووایي چې اورېدونکي ئې په پوه نه سي، شعر خپل رسالت له لاسه ورکوي. دلته زه په هیڅ وجه نه وایم چې شاعر دي د شعر لیکلو پر مهال عمدي هڅه وکړي چې شعر ئې عام فهمه او آسانه راسي ځکه شاعر د شعر لیکلو پر مهال یوه تجربه لېږدوي، که ئې چیري د لیکنې ډول ته ټول پام ځانګړی کړي، کېدای سي د تصویر پر ډېرو اړخونو معامله وکړي. دا د شاعر په هنري پخوالي پوري اړه لري چې څنګه بې له دې چې توجه ټوله د خبرو ډول ته واړوي، خپله تجربه بشپړه ولېږدوي او په پای کې د عام فهمۍ اصل هم په پام کې نیول سوی وي. دا باید ومنو چې ځیني اورېدونکي سته چې غواړي شعر ئې وننګوي، شعر ئې په ځان د پوهېدلو له پاره ذهني چلنج ته راوبولي خو د دې ډول خلکو شمېر ډېر کم دئ. دا خلک عوام نه بلکې خواص دي. زه دا هم نه وایم چې شعر دي داسي عام وي لکه عادي خبري، شعر باید خپل شعري جوهر ولري، خو نه د ستوخوالي او جبري تصنع په بیه. د ښاغلي پټیال تر ټولو عمده ځانګړنه دا ده چې د ستوخو او پېچلو خبرو پر ځای هر څه په عام فهمه ډول کوي. مثلاً، دا چې اړیکه د خدای او بنده تر منځ مستقیمه ده په دې رابطه کې دریمګړی نه ځائیږي په ډېر عامفهمه خو هنري انداز کوي:

**محتسب رډي سترګي پاته سو پر ځان یې تو کړه**
**چې د یاغي ګنهګار چیغه تر باداره ولاړه**

## بغاوت:

په هنر کې تر ټولو ډېر خوند د چوکاټونو په ماتولو او پدیدو ته د متفاوت لیدلوري په کتلو کې وي. کله چې څوک هنر پنځوي، نو باید فکر وکړي چې د نړۍ هیڅ بندیز او

محدودیت ئې مخه نه نیسي. باید دا فکر وکړي چې لوی خالق د ده د آزادۍ د حفاظت له پاره د ده پر سر ولاړ دئ. هنر د انسان د خلاقیت تر ټولو لوی ځرګندوی دئ ځکه په هنر کې انسان د خیال زرم آسمان ته هم پورته کېدلای سي. ډېر لوی هنري شهکارونه د محدودیتونو، چوکاټونو او جبرونو په کفن کې خاوري سوي دي. دا د هنر له پاره سم دم مرګ دئ چې کله ئې پنځوونکی وغواړي په زوره ئې په چوکاټونو کې برابر کړي. ښاغلی پټیال د ډېرو محدودو شاعرانو له جملې څخه دئ چې د هنر پنځوني پر مهال ډېر مست، بې باکه، زړور او بې خاره پاته سوی دئ. په هر شي کې متفاوته لاره نیول بغاوت دئ، هغه کېدلای سي په فکر کې بغاوت وي، د شعر ویلو په انداز کې بغاوت وي، د شعري چوکاټونو بریالۍ ماتونه وي وغیره. ښاغلي پټیال هم په شعر کې بغاوت کړی دئ خو مسئولانه بغاوت، نه بچګانه او بې مسئولیته بغاوت. هغه د ټولني هغه ذهني بتان ننګولي دي چې د ده په فکر د خلکو او د حقیقت تر منځ ئې د خپل اصلي رسالت ادا کول پرې ایښي بلکي په خود غرضه دلالۍ اوښتي دي. هغه وایي چې د خدای د بندګۍ تر ټولو لوی مظهر د انسان زړه دئ، تر څو چې زړه پاک نه وي، په ریاکاري هیڅکله د خدای د رښتیني دوستۍ دعوه نه سو کولای. هغه همدا راز په دې فکر دئ چې ریاکارۍ ټولنه تباه کړې ده او باید له منځه یووړل سي. په دې لړ کې ئې د ځینو کلیشه ای معبدونو لکه زاهد او محتسب ننګولو او همدا راز تظاهري تقوی له ننګولو څخه بېره نه ده کړې. ښاغلي پټیال په خپل دې کار کې د یو زړه سواند هیومانیست او بشردوست وظیفه هم ادا کوي. د پورته خبرو د مصداق له پاره لاندي بیتونه راوړم:

**ستا مینه څه سوه په خلوت کې رېږدېدلی ناست یې**
**ټولي سجدې شیخه له بیري د قهاره کوې**

دلته شاعر یو لوی بحث ته لاره پرانیزي او هغه دا چې زموږ مسلماني نیمګړې په دې ده چې یوازې د خدای د قهار صفت ته مو توجه کړې او نور ټول اوصاف مو هېر کړي دي چې هغه ټول موږ ته په ژوند کې د بلا ډېرو کارونو بلنه راکوي، لکه مصور، رحمن، ستار، غفار او داسي نور چې هر صفت ئې مسلمان ته یو درس دئ.

شاعر په دې پوره باور لري چې بغاوت ئې د ګناه مترادف نه دئ بلکي همدا به ئې د خالق په وړاندي د سپینوالی لوی دلیل وي: لکه چې وایي:

**له محرابه بغاوت دئ، له توبو توبه ګاري ده**
**د ګناوو پر لار باندي تر ایمانه به ورځو**
**په ګناهو کې ئې د عمر ثوابونه ښخ دي**
**پټیال به ورنه سي هیڅ وخت د ملاجان تر کوره**
**ما خو ژوند د خم پر څنډه او تا ژوند خلوت کې تېر کړ**
**د حساب په ورځ به دواړه یو له بله سره ګورو**

د ښاغلي پټیال اخلاقي جرئت چې به ضمن کې پر ټولو واکمنو ریاوو باندي سخت انتقاد هم دی، په دې ډول دئ:

**په مستی کې ئې له ډمي سره څیري کړه بګړۍ شېخ**
**اوس نو وایي بې دستاره نه دروزم نه در وزم**

## پیغام او هنریت په عین حال کي پالل:

پر دې باندي ډېر بحث سوی دئ چي بې پیغامه هنر ته هنر ویلای سو او که نه. ایا تشه د الفاظو بازیګري او یا په ذهني مصنوعي بې عاطفې او بې ساه تصویرونو کي لوبېدلو ته هنر ویلای سو او که نه. که ئې تخنیکي تعریفوو، هو دا هنر دئ او د هنر په تاریخي یون کي د هنري بانک د غني کولو تر عهده وزي، خو دا به نو بیا د خواصو د لوستلو وي، یوازي به د شعر د تیوریسټانو له پاره د لوستني مواد برابروي، خپل اصلي رسالت به ئې چي د ټولني رابښکېلول دي، صرف نظر کړي وي. عامه ټولنه په شعر کي په پیغام پسي ډېر ګرځي. بې پیغامه شعر د هغې غذا غوندي دئ چي خوند لري مګر هیڅ ویټامین، منرالونه او نور غذایي مواد و نه لري. په تاریخي لحاظ ټولو هغو شاعرانو چي پیغام ئې صرف نظر کړ، له ټولني څخه مخ پټي ګرځي او هغو چي پیغام او هنر ئې یو ځای پاللی، له ټولني څخه مخپټي نه بلکي په هر محفل کي ښه آزاد موجود وي. د ښاغلي پټیال یوه ډېره ښه ځانګړنه همدا د پیغام او هنریت یو ځای پالل دي.

**بلنه را نه کړي ساحله موږ لا ستړي نه یو**
**لا رسېدلي پوره نه یو د توپان تر کوره**
**په توبو نه رسېږي شیخه د ښکلا خالق ته**
**راځه چي ته تلای سې که زه د پاک سبحان تر کوره**

## اصلیت:

د ښاغلي پټیال شاعري ځکه نېغه زړه ته لاره کوي چي ډېر طبیعي او غیر مصنوعي ځي. شعر په خپل ذات کي په صنعتونو سینګارېږي یعني د شعر ښایست صنعت دئ او دا ښایست هغه وخت په بدرنګۍ بدلیږي کله چي صنعتګر بې ځایه اوډنه وکړي. ښاغلی پټیال صنعتونه ښه په خلاص لاس کاروي مګر د اوډني هنر ئې زده دئ، بدخوندۍ او بدرنګۍ ته لاره نه ورکوي. همدا راز له هنر سره هیڅکله بې وفایي نه کوي ځکه په ټوله شاعري کي یې نه تملق سته، نه مبالغه آمیزه بې ځایه غرور.

## تخیلي پیاوړتیا:

ښاغلی پټیال د هغو شاعرانو له جملې څخه دئ چي د خیال عنقا یې رشتیا هم ډېر لوړ پرواز کولای سي. هغه وائي:

**په شوخ جام کي لمر چرپیږي، سترګي نه بریښي نشه یو**
**را چاپېر د خدای انواره نه دروزم نه در وزم**

شاعر په تخیل باندی لمر راکښته کړی، مایع کړی او په جام کي چرپولی دئ که څه هم موخه ئې د لمر انعکاس دئ.

هغه همداراز وایي:

**راځه څپه کي د خوبونو الاهو ووایو**
**راځه په شور کي د سندرو یو څه وخت و پایو**
**راځه هینداره د اوبو کي خپل تصویر رسم کړو**
**راځه راځه د راز جلوه په خوبښه د زړګي وستایو**

که د ښاغلي پټیال د شعر په اړه تر دې لنډ او سطحي بحث راتېر سو، د هغه شخصیت له ډېرو زرینیو ډک وو. د هغه هر شعر د هغه د شخصیت له رنګین تصویر سره زړه ته بلا کیف ورکوي. همداراز د هغه د شعر دیکلمه کولو انداز یو خوب دئ چي خدای خبر که بیا تکرار سو.



ليکوال: استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا

# د ځوانيمرگ پتيال په ياد

نن له کندهاره د ايميل له لارې حال راغی چې د ځوانيمرگ پتيال په ياد په کندهار کې يوه غونډه جوړېږي. په ايميل کې گويا زما څخه هم د څه ليکلو غوښتنه سوې وه. د ليکنې په باب مې فکر کاوه او په چورت کې خپل هغه نظم راپه ياد سو چې زيات و کم پنځه دېرش کاله پخوا مې په کابل کې ويلی وو او په هغه کې مې د وطن د حالاتو په باب د هغه وخت د دولت، گوند، روسانو، مجاهد، مهاجر، ملا او پير له خولې راوتلې ادعاوې بيان کړې وې. د دغه نظم اول بيت داسې وو:

**عالمونه پرله اوړې په واته دي**
**و خپل ځان ته چې وگورم خپه مې مړه دي**

**او د پای څو بيته ئې بيا داسې ول:**

**هر يوه و ځانته رَشه ده ټاکلې**
**هر يو وايي زموږ کاروانه ټوله ښه دي**
**ملت وايي چې اره زما پر سر ده**
**ټول مکوټ سول که مو وچ دي که لانده دي**
**زه د خپل ډک زړه احوال ويلای نه سم**
**ها د چا خبره "خوله کې مې اوبه دي"**

د کندهار په پښتنو کې يوه وراشه سته چې وايي ماهي ته ئې وويل چې خبرې وکه، ده وويل: "په خوله کې مې اوبه دي". د دې وراشې په راوړلو سره د يو چا بېوسي افاده کېږي.

اووه دېرش کاله پر پوره کېدو دي چې زموږ د هيواد په ژبه پوه او دانسته خلک په يوه او بل نامه وژل کېږي. شرو ئې له معلمه سوې ده او "معلم مرگو" ئې بلله. معلمان وژل کېدل او هيچا نه اوښکې پر تويولې او نه ئې خوا په بدېدله. دا ساحه پراخه سوه او د ټولو باسوادو خلکو وژنه پيل سوه او دا ده تر ننه لا روانه ده. څوک ئې وژني؟ ولې ئې وژني؟ تر څه وخته به ئې لا وژني؟ د دې پوښتنو جواب په هغو خولو سره کېدلای سي چې: "اوبه پکښې نه وي". داسې ښکارې چې دا جواب د حشر ورځې ته پاته دئ او د حشر په ورځ خو نو بيا هر بنده په

خپله پیکړه اخته وي، بل ته به ئې پام نه وي. ګویا دا پوښتني به همداسي بې جوابه پاته سي.

د قدیم پټیال په ځوان وجود کي دوه رازه استعدادونه موجود ول. یو ئې سیاسي وو او بل ئې فرهنګي. په وژلو ئې هم دوه رازه خلاوي منځ ته راغلې. سیاسي او اداري خلا ئې د اندېښنې نه وه ځکه چي سیاسي خلاوي ډکېدلای سي، لکه ډکه چي هم سوه. د سرکار ژرنده نه پارچاوېږي. هرومرو یو ژرندګری ورته پیدا کوي. خو فرهنګي خلا ئې د پښتنو په دا اوسني حالت کي او په تېره بیا د کندهار په دې "آشفته بازار" کي ډېر کلونه غواړي چي ډکه سي. ده هم د تحقیق استعداد درلود او هم د تخلیق. ډېر امیدونه ورته کېدل چي زموږ د ادبي او فرهنګي تاریخ ځیني تیاره کونجونه به د ده په قلم روښانه سي. د تخلیق په برخه کي ئې هم د پرمختیا لور ته پاخه ګامونه اخیستل. ځیر ک ځوان وو. وایي چي د تهذیب الواجبات لتخریب العادات لیکونکي ملا عبدالباقي افغان به و شهید عبدالواسع اخندزاده کندهاري ته هر وخت ویل: "افسوس چي د حبو اخندزاده د ګلو باغ دي د کوندل خان په اسانو لانښ کړ". مراد به ئې دا وو چي د علم خوا دي په سیاست الیشه کړه او دا دوې هندوانې په یوه لاس کي نه سي اخیستل کېدلای. زموږ ځوانیمرګ پټیال که هم د فرهنګ لاري ته ځان یومخیزه وقف کړی وای، پښتو او پښتنو ته به ئې ډېره ګټه رسېدلې وای. اوس اوبه تر ورخ تېري دي. خدای دي مو پر وطن دروښا پلو وغوړوي. د خوانیمرګ پټیال وژني زما تر ستر ګو اوښکي

راتویي کړې. د ده ځواني، د ده استعداد او ما ته د ده اخلاص هغه عوامل ول چي زما د اوښکو چینې ئې راوایشولې. بله وسیله مي نه درلوده د زړه خپګان مي په دا ځو بیتو موقتاً دفع کړ چي د دې لیکني په پای کي به ئې راوړم.

**ظلم بې حده سو، جفا ډېره بې کچه سوله**
**له شامتو ئې ځوانمرګو زموږ په پچه سوله**
**د جواهرو په نامه ئې تېرایستلي یو موږ**
**دا لماس خیال چي پر کېده د وزې پچه سوله**
**ګونګټ راوخوت چي ګېلې ئې بورا د ګلو**
**د شاتو تمه ئې افسوس له توره مچه سوله**
**د زهرو تخم ئې ګډ کړی دئ په جام د مُلو**
**د هلاهل په شان ترخه د شونډو مچه سوله**
**راڅخه ورکه د ذین لار سوه د دنیاپه تمه**
**د عقل سترګه مو ړنده له دې لالچه سوله**
**شمعي د علم و ادب مو راته وژني هیهات**
**د تور تمونو لارویان زښته مړوچه سوله**
**تیارو د جهل راڅه واخیستی پټیال غوندي ځوان**
**د ادب ژبه مو ګونګې د غم له لچه سوله**
**"پټیال نظر سو" مې ماده د تاریخ وموندله**
**"سروه" ئې وکښله د باغ، ریښه ئې وچه سوله**

حل:

"پټیال نظر سو" تاریخي ماده ده چي ابجدي ارزښت ئې (۱۶۵۹) کېږي.

د "سروه" ریښه یعني (هـ) چي وچه سي، (سرو) پاتېږي چي ابجدي ارزښت ئې (۲۶۶) کېږي. دغه عدد چي د (وکښله) په قرینه له تاریخي مادې څخه وایستل سي ۱۳۹۳ پاتېږي. عبدالقدیم پټیال د ۱۳۹۳ش کال د لړم پر ۱۱مه په داسي حال کي ووژل سو چي په پوهنځي کي د درس پر چوکۍ ناست وو.

رحمت آریا/کاناډا

## الف لیلة و لیلة یا

# یو زر و یوه شپه

## ادبي شهکار

«وو نه وو یو پاچا وو، دی ناست پر دوکانچا وو» یا «وه نه وه تر شنه نیلي آسمان لاندي یوه ناوکۍ وه» یا دې ته ورته نوري په لسهاوو فولکوریکي داستاني سریزي د هر فولکوریک نقل یوه پیلامه وه چې مور هر یوه کلونه کلونه وراندي د ځوانو یا بوډا نقل ویونکو او یا مو له خپلو میندو او پلرونو او نورو مشرانو څخه اوریدلي دي.

د دغو سریزو او فولکوریکو داستانونو په اوریدلو لا تر اوسه ما ته هغه شیبې په یاد راسي چې زه ئې د معصومیت د پیر، بیرته نه راګرځیدونکي تللي، سپیڅلي او مروري شیبې بولم، داسي شیبې چې د لولو د الهي موهبت د مورني غږ په څیر ورڅخه یو خوندور ترنم په انګازو سي او په ما فی الضمیر کي مي د تیرو ناپخلا یادونو د سمندر تل ته بوزي او یا مي کله دومره لوړ بوزي چې د تور مخملین آسمان پر ناپایي لمني باندي لیري پراته او ځپاره زرین ستوري راته د لرغونو رومانتیکو داستانونو د ښکلي ناموندل سوي ناوکۍ په څیر په سترګکو سي؛ د ستورو په دې ناپایه سمندر کې د زړه ماشوم مارغه مي غواړي هغه لیري لیري ستوري لمس کړي چې په چوپه ژبه راته ځلیږي او د خپلي د چوپتیا نړۍ ته مي په ځانګړي معصوم راښکون بولي، ښایي راته د یو زر و یوې شپې د پانګي په شان د ناپایو نکلونو کتابونه ولري، غواړم ورسم، دومره لوړ والوزم چې لالهانده روح مي د ملایکو د تسبیحاتو له اوریدلو وروسته په تسل سي او د هماغي آسماني تالندي په قهر بدلي کریکي کي دا لندۍ واورم چې:

په هسک آسمان کي درَزهار دئ
سیف الملوک دئ، د بدرۍ سلام ته ځینه

زړه مي غواړي د آسمانونو خیالي نړۍ ته تښتیدلي، د مروري بدرۍ او درخۍ په

لټون کي د الوتاند "ديو پر اوږو" سپور سم او د ستورو په څوځندي ورا کي دغه ورکي سوي سمبوليکي ناوکۍ ومومم او په غبرگ "يه قربان" کي ورسره غرنۍ او د "اکو بکو پټپټانو" خوږې پښتني سندري ووايم، هغه بدرۍ او درخۍ چې د شاعرانو په وينا له سپوږمۍ او ستورو سره خاندي، نرگس او گلابان ئې مريدان دي او ريحان ئې له ښايسته "د غزل الهام" اخلي. او يا ورته ووايم چې:

**سترگي ته دي يو جادو دئ، ډک له مکره له افسونه**
**که ئې چل درباندي جوړ سو، ورځ دي سوه له شوا خونه**
**په ښکاره که تکي توري، خـــماري دي بوري بوري**
**په باطن تېري چړې دي، پرې کـــوي دي اندامونه**
**پام خـــطا نه وزئ نيازمنو په خـــوږو خوږ خبرو**
**په خـوږ کي ئې دي زهــر، قتلوي ژوندي ســرونه**
**په پســتو نازکــو لېچو، په وربښمينو نرۍ گـــوتو**
**ساوي باسي لـه بدنه، پرې کـــوي غټ ښـــارگونه**

او يا د رنگونو او خيالونو د معاصر پاچا نازکخيال شاعر پيرمحمد کاروان د زړه راز ورته ووايم:

**راشـــــه چي نغمې کړو ســـره گډي ربابونه شو**
**راشـــــه ســــره ولولو د شـــعر کتابونه شو**
**راشه چي باڼه پر ښو کېږدو سترگي سترگي شو**
**راشــه دا ځنــگړي کړو خړوبې دريابونه شـــو**
**راشه چي لاســـونه د شـــغلو کړو د يو بل نه تاو**
**راشه ځو جوړه جـــوړه آسمان ته شـــهابونه شو**
**راشه د دعا په شونډو ښکل د يزدان شونډې کړو**
**راشه چي سجدې شو ښـکلي ښکلي ثوابونه شـــو**
**راشه پټ پټانی شـــو او يو بل ســـره بيا "و"مومو**
**راشه ســـوال د مينې شـــو د مينې خوابونه شو**
**راشـــه چي د روح پر للمو وکـــړو د نغمو باران**
**راشه چي يو بل ته مطـــربان شو مضـــرابونه شو**
**راشــه د (رحـــمان) په غزلـــونو تندي ماتي کړو**
**راشه هسي نه چي درواغجن شـــو ســـرابونه شو**
**راشه چي " کاروان" مو د ځُـــمار له خوبه پاځوو**
**راشه چي يو بل ته هم ســـاقي هم شـــرابونه شو**

او بيا پټ په غوږ کي ورته د کاروان پيام ووايم چې:

**ته د ستورو شا ته پټه د سپوږمۍ نه ډېره ليري**
**د سحر تورو بلبلو په راوړې درنه ســـــندري**

***

**لکه لمر په غرغره وي مازديگر کي مي موندلې**
**هلالي اوږۍ په غاړه په اخـــتر کي مي موندلې**

***

**کړي دنيا راسره رخه چي ته مــــا ته وې راغلې**
**چا ته مه وايه حالونه چوپ چوپ غلې غلې غلې**

د همدغو سريزو په اوريدلو به ناڅاپه زموږ د معصوم ماشوم ذهن د تخيل د لايتناهي آسمان د هغو عجايباتو پر لور والوت چي نه چا ليدلي ول او نه ئې اورېدلي ول. په خوږو نقلونو کي د دغو عجايباتو په اورېدلو به زه له خپلو همزولو سره په زَډو زَډو سترگو په حيرت تللی وم؛ ښايي تاسو هم همدا سپېڅلي مروري شېبې د خپل ژوندانه د کتاب د خوږو شېبو په شان په ياد ولرئ.

لنډه دا چې، د بشريت د لويي کورنۍ د غړو په توگه، ټولي بشري ټولني د خپل چاپېريال د پېژندني له پاره د تخيلي عجايبو د نړۍ له همدغه پړاوه تېري شوي دي، داسي يوې نړۍ چي د ده د ذهن پر مخ ئې د تخيل په زانگو کي د لايتناهي نړۍ د الوت پراخه لمنه پرانيستلي ده خو په زړه پوري ئې لا دا چي همدغه ماشوم د واقعيت پېژندني په ډگر کي همدغه تخيل تر يو مهاله واقعيت گڼلې او هغه ئې ان د خپل باور، بنسټ منلی دئ.

قصې د بشريت د فرهنگي مواريثو يوه ستره برخه ده چي د سمڅ استوگنو بشري نسلونو له مهاله نيولې تر نورو راتلونکو نسلونو پوري سينه پر سينه يو بل ته لېږدېدلي او خپل ځانگړی ځای ئې د بشري

ټولنو په فرهنګي وده کې ساتلې دي؛ د قصو دغه ځای ځایګی هغه مهال مور ته لا ښه روښانه کېږي کله چې لږ شا ته وګورو او ووینو چې معاصري ټکنالوژۍ او ساینس د نړۍ د پیاوړو متفکرینو هغو پوښتنو ته د قناعت وړ ځواب ورکړی چې یو وخت ئې د دوی اذهان د هماغه مهال د تخیل په نړۍ کې بوخت ساتلي ول. خو د هستۍ په رموز پوه د نن ورځې انسان د پخوانیو نسلونو برعکس، تخیل ته د واقعیت ځای نه ورکوي، ځکه چې استدلال کوي او پر عقل ډېره لګوي او په دې سره کرار کرار د قصو او افسانو د تخیل په نړۍ کې د یون او آزاده الوت موهبت او خوند له لاسه ورکوي. همدغه ټکي ته په کتو ده چې له سینو ځخه سینو ته د رالېږدېدلو تخیلي قصو ارزښت لا نور په ډاګه کېږي او ساتنه ئې راتلونکو نسلونو ته چې تر مور به لا ډېر استدلالي او په عقل پوه وي ټولو فرهنګیانو او د فرهنګي مواریثو پالونکو ته مهمه کېږي.

"الف لیلة و لیلة" یا د "یو زر و یوه شپه" قصې چې په " هزار افسان"، "الف لیلی" او "هزار و یک شب" هم یادېږي د دودیزو شفاهي قصو یوه لویه پانګه ده چې د سدیو سدیو اوږد مزل ئې وهلی، د سیمي په بېلابېلو مدنیتونو کې ئې لسیزي لسیزي تېري کړي، د هغوی په فولکوریک بڼ کې ئې بېلابېل او ګېډۍ ګېډۍ رنګین ګلان کرلي خو تر ځنګ ئې د همدغو ټولنو په فرهنګي بڼونو کې په خپله خړوبه شوي او نوي غوټۍ ئې پنځولي او په لا پیاوړي بډاینې د بل مدنیت فرهنګي بڼ ته مېلمنه تللې او هلته ئې خپل ګلان ډالۍ کړي او نور ګلان ئې راتول کړي او په دې ډول سره لا نوره بډایه سوې او په پای کې د فولکوریکو نکلونو یوه ستره پانګه ورڅخه جوړه سوې ده.

د سدیو په یون راوتلې همدا سترې ستومانه ټولګه نن د پښتانه فولکوریک بڼ ته په پښتنې ژبې او پښتني جامو کې د افغانستان د لرغونو او کلاسیکو آثارو د نومیالي محقق، لیکوال او شاعر استاد محمد معصوم هوتک په زښت پیاوړي قلم په منثور او منظوم ډول میلمنه راغلې او د پښتو د فولکوریک ادب سمسور بڼ ته د فولکوریک ادبي شاهکار په شان ډالۍ شوې ده. لوستونکي به هغه مهال دا ژباړه د پښتو یو ادبي شاهکار ومني کله چې په لسو ټوکو کې پښتو ته ژباړل شوې دغه ټولګه زما په شان په لېونۍ او خوندوري تندي ولولي.

د منځنیو پېړیو دغه فولکوریکه فرهنګي پانګه د نړۍ زښتو ډېرو ژبو ته ژباړل سوې ده. اروپایي ژبو ته د ژباړو سرچینه ئې عربي وه چې لومړی په ۱۷۰۴ ز کال کې د فرانسوي ژبې له لاري اروپا ته راغله او بیا پنځه کاله وروسته انګلیسي ته د ۱۰۰۱ Nights او بیا د The Arabia Nights په نامه خپره سوه. له هغه وروسته ډېرو فرانسوي، انګلیسي، هسپانوي، هندي، چینایي، جاپاني او په لسهاوو نورو ژباړونکو دا پانګه وژباړله. د همدې پانګي بشپړه پښتو ژباړه په لسو ټوکو کې د رشاد د خپروندویې ټولنې له پلوه په زرو ټوکو کې په ۲۰۱۳ز کال په کندهار کې په ښکلي قطع او صحافت چاپ سوه او ژباړه ئې استاد محمد معصوم هوتک د شپاړلسو میاشتو په ترځ کې بشپړه کړه. د استاد م. م. هوتک صاحب په هکله ویل او ستایل دلته اضافه ګڼم، ځکه چې نوموړی په هیواد کې په ټولو اوسنیو فرهنګي او اکاډیمیکو کړیو او بنسټو کې پېژندل سوی اکاډیمیک شخصیت دئ.

استاد محمد معصوم هوتک د یو زرو یوې شپې داستاني ټولګه له ۱۰۷ شپې وروسته ژباړلې ده چې له لومړۍ شپې تر نوموړې شپې پورې اروانښاد محمدانور نومیالي صاحب لا مخکې ژباړلې وه. په حقیقت کې ښاغلي هوتک خپل کار له څلورم ټوکه پیل کړی نو له همدې کبله د څلورم ټوک په پیل کې دوې سریزې راغلې چې لومړۍ ئې د ښاغلي هوتک او دوهمه هغه ئې د نومیالي شاعر، محقق او ټولنپوه ښاغلي عبدالباري جهاني صاحب ده او دواړو ښاغلو د کتاب پر اړوندو سرچینو، د منثوري او منظومي برخي د ژباړې پر څرنګوالي او نورو برخو باندې او د ټولنپوهنې په ډګر کې د جهاني صاحب ژوره شننه پکښې راغلې ده. هوتک صاحب د سریزې په پیل کې لیکي:

"د "یو زر و یو شپه " په نامه مشهور نکلونه له عربي ژبې پښتو ژبې ته وار د واره په منثور شکل اروانښاد محمدانور نومیالي (۱۹۲۶- ۲۰۰۶ ع) له نن څخه شپږپنځوس کاله پخوا په کندهار کې راواړول او یوه برخه ئې د طلوع افغان ورځپاڼې له لارې په اقساطو خپره کړه. په دغه کار کې ئې اروانښاد محمدیوسف ویران (۱۹۲۶ - ۲۰۰۳ ع) هم همکار وو. خو دا لړۍ ډېره و نه پائېدله او د هغه وخت سرکاري مقاماتو ئې د خورا بې منطقه استدلال له مخې د خپرېدو مخه ونیوله. اروانښاد نومیالي مصمم سړی وو. خپله دغه هڅه ئې دروڅلو ښت کاله وروسته په مسکو کې د خپل مهاجرت په دوران کې بیا له سره کړه او لومړی ټوک ئې، چې له روسي او عربي متن څخه پښتو سوی دئ، هورې د ۱۹۹۹ع کال په مې میاشت کې په ښکلې قطع و صحافت پر ښکلي کاغذ له چاپه راووت چې د ده په خپل لاس خطاطي سوی وو او د "لېمې" مجلې د دریمي ګڼې پر ځای خپور سو.... د دې پښتو ترجمې هر کلي په پښتنو کې نسبتاً مساعد هر کلی وو. د هغه چا چې د دې کلاسیک اثر په ارزښت سر خلاصېدی، هغوی د اروانښاد نومیالي دغه کار ډېر وستایه. اروانښاد نومیالی د ۲۰۰۶ع کال په اکتوبر کې مړ سو او د یو زر و یو شپه پښتو ژباړې څو نور ټوکه ئې چې ټول ۷۶ شپې کېدلې، ناچاپ پر ښودل".

له دې لړ څه وروسته هوتک صاحب د ښاغلي جهاني صاحب د یوه لیک متن را اخلي چې یادونګ ې دلته اړین بولم:

"... څو ورځې وروسته د ټولو ځوابونه راورسېدل. جهاني صاحب راته لیکلي ول:

"... رالېږلي نکلونه مې په ډېر غور ولوستل. بې له تشریفاتو درته وایم چې د ویلو ځای پکښې نسته. ماشاء الله. خدای دې پر قلم برکت کښېږده. ښایي په ژوند کې دې داسي بل شهکار نه وي کړی او یا ښایي د بل داسي شهکار د ایجادولو زمینه پیدا نه کړای سې. خدای دې تا ته اجرونه درکړي او خدای دې پښتنو ته دونه پوهه ورکړي چې ستا د دې شهکار قدر وکړي. شعرونه دې فوق العاده ښایسته ترجمه کړي دي. تر دې ښایسته ترجمه د هر چا تر وس وتلی کار دئ. که زما ګران استاد او ملګری نومیالی صاحب هم ژوندی وای هم به ئې تر دې ښه نه وای ترجمه کړي او که هغه ته دې خپله ترجمه ښودلې وای، ښایي د خپل باقي پاته کار مسئولیت ئې تا ته سپارلی وای. زه یقین لرم چې دا کار په پښتو ژبه کې نه بل څوک کوي او نه ئې دونه په وس پوره ده. تا ته دې خدای خیر درکړي. ستا پر قلم دې برکت وي او زه

درته د روغ صورت او اوږده ژوند دوعا کوم.
ستاورور جهاني".

که رښتیا سره ووایو هماغسي چي ښاغلي جهاني صاحب ویلي زه هم د جهاني صاحب د خبرې په تائید وایم چي یوازې استاد محمدمعصوم هوتک وو چي په خپل پیاوړي زغم او هڅي ئې د دومره درانده فرهنګي پېټې د اوچتولو وسعه په ځان کي لیدله چي داسي یو شهکار ئې د پښتانه فولکوریک ادب لمني ته ډالۍ کړ او نه یوازي استاد هوتک ته بلکي د افغانستان ټولو پر ګنو په ځانګړې توګه د افغانستان فرهنګي ټولنو ته د داسي یوه ادبي شهکار مبارکي وایم چې له سدیو سدیو وروسته دا دئ دغه پانګه په بشپړه توګه په دوني ښکلې فولکوریکه ژبه ژباړل او بیا پنځول سوې چي زه ورته د ستاینې الفاظ نه لرم.

د جهاني صاحب د پورتني ټکي په ملاتړ دلته څو دلایل وړاندې کوم: لومړی د الف لیلة و لیلة فولکوریکه پانګه چي له دې وروسته به ئې د "یو زر و یوې شپې د نکلونو" د ټولګي په نامه یادوم هم منظومه ده او هم منثوره. د ژباړې تر ټولو درنده او ګرانه برخه ئې همدا منظومه برخه ده. د منظومې برخې ژباړه ځانته زښتې ډېرې لوړې ژورې لري. په یو زر و یوې شپې کې هره کیسه په خپل متن کې دننه بله کیسه لري او هره کیسه ئې د خپلې محتوی او بیان له اړخه د فرهنګي عناصرو په پام کې نیولو سره اوږده او لنډ اشعار لري او هر شعر د خپل بیان، محتوی او شکل له اړخه له یو بله توپیر لري خو په منځ کي ئې ګډ ټکی د مینې عنصر دئ. دا برخه یوازې هغه کسان ژباړلای سي چي په ټولو شعري بحورو کي بر لاس ولري چي په همدې برخه کي هوتک صاحب له مبالغې پرته خپل استادانه هنر له څون و ځار پرته په زباد رسولی دئ.

بله فرهنګي برخه ده. له فرهنګي اړخه څو ټکي اړین دي، یوه دا چي یو زر و یوه شپه یوازې د یوه ځانګړې هیواد او مدنیت پنځونه نه بلکي د یوې پراخې سیمې د څو مدنیتونو ګډه پانګه ده او هر مدنیت د خپلو فولکوریکو فرهنګي هستیو پر بنسټ وربانديځ خپل سیوری غوړولی او ځرګنده ده چي دغو برخو هم د داستانونو پر محتوی او هم د اشعارو پر بیاني برخې باندې اغېزه شیندلې ده. له دې کبله د دغو مدنیتونو لکه د هند، فارس، بین النهرین، مصر او سوریې له تأریخي مدنیتونو سره په ځانګړې توګه د منځنیو پېړیو له تواریخو او آثارو سره بلدیت دئ چي یوه ژباړونکي ته دا وسعه او صلاحیت په لاس ورکوي چي په خپله ژبه کي ئې د یوې پانګې په ډول له سره وپنځوي خو په دې شرط چي اصلي متن د خپلې محتوی او بیان له اړخه په هماغه ډول په امانت ساتل سوی وي چي هم زموږ له فرهنګي حساسیتونو سره په ټکر کي نه وي او هم امانت ځای پر ځای ساتل سوی وي. استاد م. م. هوتک صاحب دغه اساسي عناصر په دومره ښکلې ښه ژباړلي چي څوک ګومان نه کوي دا دي د کوم دباندني فرهنګ ژباړه وي بلکي په پښتني ټولنه کي دننه د ده خپله فرهنګي پنځونه به ئې وبولي. یوار بیا وایم دا ټکی هغه مهال راسره څوک منلای سي چي د همدغو ټکیو او حساسیتونو په پام کي نیولو سره ټوله پانګه له سره تر پایه په خوند ولولي. دا چي استاد هوتک صاحب د خپل فرهنګي ژوندانه په ټولو لوړو ژور کي له پخوانیو کلاسیکو متونو سره ښه بلدیت لري او په همدې برخه کي

ئې پلټنې کړې نو دا هغه بله ځانګړتیا ده چې دی ورڅخه په برلاس برخمن دئ.

یوه ښه ژباړه هغې ژباړې ته ویل کېږي چې ژباړونکی پر خپلې ژبې، د موخې یا مقصد پر ژبې او د موضوع پر متن باندې د بشپړ برلاسي په لرلو په خپله ژبه کې د مقصد ژبې له پاره د عامه خلکو د پوهې پر بنسټ برابر مصطلحات ومومي او د مقصد د ژبې د متن معنی په امانت سره خلکو ته ورسوي، او د موضوع حقیقي متن تر خپل لیکنیز سبک ځار نه کړي؛ د مقصد په ژبه کې کارول سوی سبک په دې شرط په پام کې ونیسي چې معنی د سبک قرباني نه کړي او په پام کې ولري چې د چا له پاره ژباړه کوي، د ټولنې یوه ځانګړې برخه ئې لولي او یا ئې ټول عوام. تر هغه ځایه چې زه په ژباړه کې خپله نیمګړې تجربه لرم ویلای سم چې استاد د ژباړې ټول بنسټیز ان نازکخیاله معایر په بې ساري مهارت او په ډېر امانت ساتلي او په متن کې دننه ئې په پیاوړې استادۍ د پښتو ژبې ارزښت اړین مصطلحات چې د معنی په رسولو کې خورا ډېره مرسته کوي کارولي او ژباړه ئې دومره پخه او خوندوره کړې چې لوستونکی د متن په لوستنه کې نه یوازې ستونزه نه ویني بلکې خوند ورڅخه اخلي او ان دا چې لوستونکی په همدې داستاني ژبه کې خپله روح احساسوي او په متن کې دننه د بیان سویو پېښو له کرکټرونو سره یو ځای ګام اخلي. که هر ژباړونکی پر دې ټکي بریالی سي چې د لوستونکي ذهن او روح په متن کې دننه له ځان سره راواخلي هغه ژباړه نه بلکې شهکار دئ او په یقین سره چې موږ د استاد په دې شهکاره ژباړه کې د هغه د پیاوړي قلم له څوکو څڅېدلي کوډې په ذهن لمسولای سو. که څوک د یو زر و یوې شپې پښتو متن ولولي په ډاډ ویلای سم چې هیڅ څوک به دا احساس و نه کړي چې دا متن ژباړل سوی دئ، بلکې دا به ومني چې دا په خپله د استاد هوتک یوه شهکاره پنځونه ده. او یا به دا احساس وکړي چې د کندهار یو نامتو نکل ویونکی او راوي دئ چې د کندهار په یوه لوی بن کې تر شنه سیوري لاندې او یا هم د ژمي د صندلۍ تر پټي لاندې ناست او په خپله خوږه کندهارۍ پښتو لهجې درته خوندور داستانونه وایي. د همدغه حساسیت په پام کې نیولو سره ښايي ځیني پښتانه لوستونکي دا ګوت نیونه ولري چې ولې ئې په دومره خالصه عامه کندهارۍ لهجې ژباړلی دئ. د یوه لوستونکي په توګه دغه ممکنه ګوت نیونه د ژباړې د پورتنیو ځانګړتیاوو له مخې په کلکه غندم، ځکه چې یو زر و یوه شپه یوه فولکوریکه پانګه ده او په فولکوریکو ژباړو کې باید عامه ژبه په پام کې ونیول سي، په دې بشپړ ډاډ لرم چې استاد د پښتو پر ټولو عامو لهجو بشپړ واک لري او هره لهجه ځانته ځانګړې سیمه ییزې ځانګړتیاوې او خوندونه لري، او دا به هر ژباړونکي ته ناشونې وي چې په داسي یوې فولکوریکي پانګي کې دي د ټولو پښتو لهجو ځانګړتیا په پام کې ونیسي او که ئې و هم نیسي نو هغه خوند چې په اوسنۍ ژباړه کې پروت دئ دغه خوند به بیا پکښې و نه مومو، که ځیني کسان په همدې ټینګار سره وغواړي د لهجو ستونزه رابرسیره کاندي نو دوی ته دا ویل په کار دي چې دا په نړۍ کې یو اصل دئ چې یو متن څو څو ځله د بېلابېلو ژباړونکو له پلوه ژباړل کېږي. اوس خو استاد هوتک صاحب د دغې پانګې پوخ بنسټ په پښتو کې کېښېښود، تر ټولو ستونزمن کار چې د پانګې منظومه برخه ده هغه هم خلاصه او چمتو ده، نو که بل څوک وغواړي چې له سره ئې وژباړي تر دې به بل ښه کار چیري وي چې لستوڼي رابډ وهي او ټینګه ملا دي ورته وتړي. دا کار به د یو زر و یوې شپې د پانګي ارزښت څو چنده نور زیات کړي.

د هوتک صاحب دغه ټول کار یوازې په ژباړې نه رالنډېږي، بلکې استاد د یو زر و یوې شپې د عربي، فارسي، انګلیسي او روسي ژباړو په پرتله کولو دا کتاب ژباړلی دئ. څلور واړه نسخې ئې خپل مخ ته ایښې دي، هر ټکی، هره کرښه، هر پاراګراف او هر شعر ئې له څلورو واړو متونونو سره پرتله کړی او بیا ئې په پښتو کې پنځولی دئ

او دا آسانه کار نه دئ. له دې کبله دا یوازې ژباړه نه بلکې ژوره پلټنه ده چې شپې و ورځې ئې ورباندې تېرې کړې او په زښتې خوارۍ ئې د زړه په وینو داسي بې ساری شهکار پنځولی چې د ده نوم به د هیواد د پښتو د فرهنګي تأریخ په پاڼو کې تر ابدیته پورې ژوندی وساتي. بشپړ داډ لرم چې دا به د پښتو فولکوریکو داستانونو د لیکوالانو له پاره له هره اړخه یو داډمن اخځ وي.
زما په اټکل د دې پانګې څه باندې څلوېښت په سلو کې برخه په نظم ویل سوې چې ډېرې ئې د حسن او ښکلا په ستاینه کې ویل سوې دي له دې کبله پښتانه سندرغاړي کولای سي له دغو شعرونو څخه ښکلي سندري او ټپې جوړې کړي.
د اروپا په یو ډېر شمیر آپراګانو کې د یو زر و یوې شپې ننداري په څو څو ځله په موزیکال ډول جوړې سوي دي؛ د هالیوود او بالیوود دستګاوو د دې پانګې ډېری نکلونه د فلم په ډول جوړ کړي دي. د کارتوني فلمونو جوړوونکو ان د یو زر و یوې شپې په سلهاوو نکلونه کارتوني کړي دي. افغان هنریاله پاړکه کولای سي د همدې پښتو پانګې له مخي خپلې نوري هنري پنځونې وکړي. زموږ فولکوریک سندرغاړي په ځانګړې توګه ورڅخه خورا خوند او ګټه اخیستلای سي.
نکلونه او قصې د یوې ټولنې د ټولنیز ژوندانه، د ټولنې د روحیاتو او د ځانګړې ټولنیز چاپېریال د فرهنګي اړخونو استازیتوب کوي. له دې کبله ده چې د فولکوریکو نکلونو په اوږدلو او لوستنګ کولای سو د هغوی په اتنوګرافیک او سوسیولوژیک ژوندانه پوه سو. نو ځکه لرغوني افسانې او نکلونه د هماغو ټولنو او یا د یوه پخواني مدنیت د وګړو د خوبونو هینداره ده چې د حقیقت موندلو هیله ئې درلودله؛ کټ مټ لکه د نن ورځي د ساینس فکشن داستانونه چې بشریت د آسمانانو په لور الوځي، پرمختللې تکنالوژي لري او په نورو کهکشانونو کې له نورو انسانانو سره یا اړیکه نیسي، د هغوی ملاتړ تر لاسه کوي او یا ورسره جګړې کوي. نکلونه او داستانونه د ټولنپوهني د ځانګې له پاره اړین ټوکي دي. نکلونه هم د انسانان په څېر له انسانانو سره یو ځای د بشریت په منځ کې له یوه ځایه بل ځای ته کډه کوي، یو ګڼ شمېر نکلونه دي چې د محتوی له اړخه یو خو د بیان، طبیعي چاپېریال او د کرکترونو له اړخه له یو بل څخه توپیر لري او موږ همدغه ځانګړتیا د یو زر و یوې شپې په څو لویو نکلونو کې په پرله پسې ډول وینو. له همدې کبله ده چې ان موږ په خپلو پښتني او سیمه ییزو نکلونو کې د یوې محتوی نکلونه وینو په بله معنی یوه نکل ته څو ډوله وریانټونه لرو. یو شمېر کیسې او داستانونه د پند، عبرت او ټوکو په ډول زموږ د ټولني لمنې ته له نورو سرچینو څخه راغلي دي لکه: جوامع الحکایات، د مثنوي معنوي په منځ کې یاد سوي داستانونه، منطق الطیر، طوطي نامه، کلیله و دمنه او د سعدي ګلستان او بوستان، چې له همدغو سرچینو څخه اخیستل سوي او د سیمو د وګړو له پلوه ورته بېلابېل وریانتونه جوړ سوي دي. زموږ د پښتني فرهنګ ادب لمنه هم په ډېرو نکلونو ډکه ده چې مشهور هغه ئې، آدم خان و درخانۍ، فتح خان و رابیا (رابعه)، شیرعالم او مامونۍ، موسی خان او ګلمکۍ، دلۍ او شهو او نور او نور دي. همدا شان ګڼ شمېر منظوم نکلونه په پښتو کې سته لکه: د سیف الملوک او بدرۍ جمالي نکل، بهرام او ګل اندامه، سبز پري و زرد پري، بربښنا و خدۍ او نور. د یو زر و یوې شپې په نکلونو کې ان د رستم داستان ته یوه نغوته سوې او د رستم اسطورويي او افسانوي خواک پکښې انځور سوی دئ. دا چې څنګه د رستم داستان دلته راغلی یو لامل ئې ښایي دا وي چې همدغو نکلونو د معاصر افغانستان د هغه مهال په جغرافیوي چاپېریال کې پوخ ځای درلود او یا هم ښایي د بغداد او مصر د نکلونو لمنې ته ئې کډه کړې وي. یا موږ د کوه قاف د پېریانو او دېوانو نکلونه وینو چې پکښې کابل ډېر یاد سوی دئ. دا د دې زباد دئ چې افغانستان هم په دغو نکلونو کې خپله ونډه لوبولې ده.
ښایي ځینو ته د شعر ژباړه خورا آسانه په

نظر ورسي، خو زما په اند تر هري بلي ژباړي تر ټولو سخت او دروند کار شعري ژباړه ده، شعري ژباړه په خپله یو لوی کمال او هنر دئ، هغوی ته ورته موزون استعارات او د اوزانو موندل، د شعر د پیام ساتل او په خوندور موزون کلام کي ئې خپلي ژبي ته رااړول او نور ټول په ګډه هغه ابعاد دي چي یوازي ئې په شعري اوزانو او نازکیو خبر یو شاعر ـکولای سي وژباړي، هغه ته هماغه احساس ورکړي چي په لومړۍ ژبه کي دئ او نور؛ نو ځکه د ژباړي یوه درنده او سخته برخه شعري ژباړه ده خو استاد هوتک پکښې خورا برلاسی دئ چي دلته په یو زر و یوې شپې کي د استاد د شعري ژباړي څو بېلګې وړاندي کوم.

هره شپه په یوه ځانګړي بیت پای ته رسېږي او هم دا د هري شپې په پای کي وینو:

**د سهار شمال را والوتی روڼا ســوه**
**د شهرزادي کیسه پاته تر سبا سوه**

په دې شعري ژباړو کي د استاد یوه استادانه ځانګړتیا دا ده چي هم ئې د اصلي شعر ښه ساتلې او هم ئې همدغه شعر ته ورته په څوڅو ځایونو کي پښتو متلونه راوړي دي چي هم ئې د شعر مفاهیم ساتلي دي او هم ئې په ساده بیان په شعر ویلي دي:

**شکر شکر دي وي خدایه چي مي بخت سو را بیدار**
**زما د سر دښمن نابود سو هلته پروت دئ خوار و زار**
**ما لیدلي دي په ژوند کي ډېر سرونه ډېر تنونه**
**چي خپل ظلم و ستم دي رَسولي تر جګ دار**
**هوښیارانو را پرې ایښی دا متل له زمانو دئ**
**"کوهی مه کینه و چا ته، نه چي خپله سې پر غوزار**

او یا په یو سلو دري پنځوسمه شپه کي د هارون الرشید د خلافت پر مهال د علي بن بکار او شمس النهاري د نکل یو ساده شعر چي راوي ئې د اوریدونکي د پاملرنې او هغه ته د یوه بیاني انځور په ورکولو د بل شاعر له خولې د هلک او نجلۍ دواړو د ښکلا په ستاینه کي وایي: شپږ واړه ژباړل سوي ټوکه د همداسې بیلګو په پانګه ډک دي.

**څه لوړ قد دئ د دې ښکلي، څه جمال د دې**
**ښایستې**
**ته وا سروه ده له باغه، صفایي ده د آینې**
**زړه ئې ډک په مهر و مینه، غېږ پسته ده تر ورېښمو**
**دلربا د هندوستان ده، محبوبا د بنګالې**
**اورنی شغلو د مخ ئې حورې پټې په حجاب کړې**
**له زاهده سوه لار ورکه، خیال ئې سو د میخانې**

شپږم ټوک دري سوه و یوولسمه شپه، اته ویشتمه پاڼه: مینځه خپل څښتن ته وایي چي ما پر همدغه سرې وپلوره چي ښایسته دئ او د هلک په ستاینه کي دا شعر وایي:

**چي دا چنګه نری ملا دا توري سترګي پر جهان وي**
**خود به زړونه د مینو په هر وخت پسي نالان وي**
**ما بل ځای تصور نه کړې داسي بوري مړاوي سترګي**
**یا په دښت کي د هوسۍ وي، روایت به د داستان وي**
**په ښایست مي زړه ژوندی سو په ښکلا سترګي روښاني**
**نوکري به ئې په ویاړ کړم، که ئې مینه زما په ځان وي**
**دا جهان بې ښکلو مه کړې، پاکه ربه تر څو پوري**
**چي دا ستوري پاس ځلېږي چي دا مځکه دا آسمان وي**

په یوې بلي شپې او په ورپسې څو نورو راتلونکو شپو کي موږ وینو چي یو زر و یوې شپې په خپلو نکلونو کي ښځو ته هم دومره لوړ مقام ورکړی چي په دیني، طبیعي علومو، شعر، کسب و کار کي ساری نه لري؛ مینځه هم حسن و ښکلا لري او هم په خدای ورکړي استعداد کي د خلافت تر ټولو پوهانو پوهه ده. له هنري اړخه دا کیسه زښته ډېره په زړه پوري ده. راوي همدا عالمه ښځه لومړۍ د یوې مینځي په انځور کي وړاندي کوي. له خپل څښتن سره ئې شرط ایښی وو چي پر داسي چا به ئې خرڅوي چي د دې خوښه وي. هر پېردونکی چي راځي په منګ زوړ دئ، لنډه دا چي پر یوه ځوان پلورل کېږي او داستان ورو ورو د ژوندانه د چاپېریال په رنګ و خوند ښکلی کېږي. په پای کي د خلیفه په دربار کي په شعر، طب، نجوم، احادیثو، تفسیر القرآن او نورو علومو کي د خلیفه د دربار ټولو علماوو ته ماته ورکوي او خلعتي پګړۍ ئې ورځخه اخلي او د ټولو علماوو ځای نیسي. له ټولنیز او اخلاقي اړخه که څه هم د یو زر و یوې شپې نکلونو د

هماغه مهال د حاکم ټولنيز ژوندانه پر بنسټ ډېرو کسانو ته د مريي او مينځې دريځ ورکړی مګر د نر او ښځې تر منځ تعادل ئې په ټولو نکلونو کي د ثروت، د زور، د ربړي، کړاو او رنځ او نورو اړخونو له مخې ساتلی چې په پای کي ئې لوړ مقام ته رسوي.

نه غواړم د دې مقالې پاڼې د يو زر و يوې شپې د ژباړل سويو شعرونو په بېلګو ډکې کړم، خو يو ځل بيا په ټينګار وايم چې استاد هوتک نه يوازې په دې ځانګړې برخه کي خپله استادي ځرګنده کړې بلکې د انګليسي، عربي، روسي او فارسي نسخو په پرتله کولو ئې ټول هغه نامتو شعرونه را اخيستي چې په ځانګړې ډول په عربي نسخو کي راغلي دي. يو شمېر اشعار يا په فارسي نسخې او يا په انګليسي نسخې کي نسته او هوتک صاحب د پاڼو په لمنليکونو کي په بشپړ امانت شرحه ورکړې ده. دا کار يوازې ژباړه نه ده بلکې يوه پراخه او هر اړخيزه پلټنه ده او همدا لامل دئ چې که زما په ګډون بل هر څوک وغواړي د يو زر و يوې شپې بيا ژباړه تر لاس لاندې ونيسي نو دا ژباړه به ورته د بنسټيز ريفرنس ارزښت ولري څکه له يوې خوا خورا ډاډمنه ژباړه ده او له بلې خوا يو تحقيقاتي اثر دئ.

هماغسي چې مخکي مي نغوته وکړه د يو زر و يوې شپې د نکلونو د ژباړې پيل لومړی اروابناد نوميالي صاحب کړی وو؛ نوموړي دا نکلونه تر ۱۱۷ شپې پوري ژباړلي ول خو ژوند ورسره وفا و نه کړه او دا لړۍ همداسي د هوتک صاحب تر هڅو پوري په ټپه دربدلې وه. د نوميالي صاحب ژباړه په ۳ ټوکو کي ده او هوتک صاحب له څلورم ټوک څخه خپل کار پيل کړی دئ چې له څلورم تر لسم ټوک پوري په لاندي ډول وېشل سوي دي:

۱- څلورم ټوک: له ۱۰۷ تر ۱۶۹ شپې پوري. ۳۹۲ پاڼې. هوتک صاحب د تاج الملوک د کيسې د بشپړ پاته کېدلو له پاره خپل کار له همدغي ۱۰۷ شپې څخه پيل کړی دئ.

۲- پنځم ټوک: له ۱۷۰ تر ۳۰۶ شپې پوري. اتلس نکلونه، ۴۲۴ پاڼې.

۳- شپږم ټوک: له ۳۰۷ تر ۴۶۱ شپې پوري. ۴۴۰ پاڼې.

۴- اووم ټوک: له ۴۶۲ تر ۵۷۷ شپې پوري، ۳۸۴ پاڼې.

۵- اتم ټوک: له ۵۷۸ تر ۷۱۸ شپې پوري، ۵۵۲ پاڼې.

۶- نهم ټوک: له ۷۱۹ تر ۸۷۲ شپې پوري، ۵۴۴ پاڼې.

۷- لسم ټوک: ۸۷۳ تر ۱۰۰۱ شپې پوري، ۵۴۴ پاڼې.

ټولي ژباړل سوې پاڼې ۲۸۸۸ پاڼې.

فولکلور له دوو کلمو فوک/ فولک او لور څخه جوړه ده چې لومړۍ ئې د پرګنو او دويمه هغه ئې د پوهې په معنی ده او د هغو ټولنيزو باورونو، دودونو او ټولنمنلو نکلونو لړۍ ته ويل کېږي چې د تأريخ په اوږدو کي خوله پر خوله او سينه پر سينه له يوه نسله و بل نسل ته لېږدېدلي او په پای کي د يوه يا څو تنو له پلوه د څاروي د پوستکي پر مخ، څرمن او وروسته د کاغذ پر مخ ليکل سوي دي. زموږ د هيواد په پراخ جغرافيوي چاپېريال کي د اوستا او ويدي سندرو په ټولګو کي دغه شمېر ډېر ليدل کېږي. دا نکلونه او باورونه د پانيات (پند)، اخلاق، ديانت، پاکۍ، ښه ټولنيز ژوند، سياست او نصايحو بيان کوي. د هندوستان د لرغوني ادب په تأريخ کي د مهابهارتا په ګډون څو کتابونه زښت ډېر ارزښت لري چې په ډله کي ئې يو پنجا تنترا او بل ئې نيتي چسترا نومېږي او دواړه ئې په سانسکريت ليکل سوي دي. پنچا په سانسکريټ کي پنځه او تنترا د څپرکي په مانا ده يعني پنځه څپرکي يا پنځه فصلونه. له نېکه مرغه پنچا تنترا د دبير دانش تر نامه لاندي د شاد محمد خان له خوا پښتو ته ژباړل سوې او د هيواد نوميالي څېړوندی استاد حبيب الله رفيع صاحب ورباندي څېړنيز تقريظ ليکلی دئ. دغه پنچا تنترا په شپږمه زېږديزې پېړۍ کي د انوشيروان د واکمنۍ پر مهال پهلوي

ژبې ته ژباړل کېږي چې دا نسخه په بشپړ ډول له منځه تللې خو د همدې پېرۍ په اوږدو کې يعنې د ۵۷۰ ز کلونو په شاوخوا کې د لومړي ځل لپاره د (کليلک او دمنک) تر نامه لاندې سيرياني ژبې ته ژباړل کېږي چې نن د کليلې و دمنې په نامه يادېږي. نيتي چسترا د "پوهې تر رڼا لاندې د ژوندانه د لارې" په معنی کېږي. په اتمه زېږديزه پېړۍ کې بن مُقفع د پنچاتنترا پهلوي ژباړه عربي ته واړوله او همدا ژباړه وه چې لاره ئې د فارسي په گډون نورو اروپايي ژبو ته ومونده. مهابهارتا دوه سوه و پنځوس زره بيته لري. مهابهارتا او نيتي چسترا دواړه د پنجاتنترا د پنځون دوې مهمې سرچينې دي. په پنچا تنترا کې پنځه بابه دي؛ لومړی باب ئې (اسد و الثور) يعنی زمری و غوايي، دويم باب الحامهٔ و المطوقه يعني کوتر و موږک، دريم باب البون و الغربان يعني د کونگانو او کاغانو دښمني، څلورم باب ئې القد و السلحفا يعني بيزو او شمشتې او پنځم باب ئې الناسک و ابن عرس يعنی د ناسنجول سويو کارونو زيانونه. کليله و دمنه د نړۍ په ۲۱ ژونديو ژبو ژباړل سوې ده. د پنجا تنترا نومونه د کليلې و دمنې تر څنگ انوار سهيلي، عيار دانش، علمخانهٔ دانش، همايون نامه، نگار دانش، جاويدان خرد، اخلاق اساسي، گلشن آرا، مرات الملوک او پښتو ئې دبير دانش ده. هندوستان د خپل ادب په لمنه کې د زرهاوو کلونو په لړ کې تمثيلي ادب پنځولی، روزلی او بيا ئې نورو سيمو ته لېږدولی دئ او يا ئې په نړۍ کې له مخې تقليد سوی دئ. دغه نکلونه په لرغوني آريايي ژبې ساسنکريت او پالي يا خروشتي ليکل کېدل او پنچا تنترا د همدغه تمثيلي ادب لومړی کتاب دئ چې د نکل په منځ کې ئې بل نکل د مهابهارتا له مخې راغلی دئ. همدې سوژې وروسته خپله لمنه فارس، بغداد، مصر او سوريې ته واړوله او د هزار افسان په نامه يوه لنډه ټولگه ورځخه وپنځول سوه، په بغداد کې ستره سوه، په مصر کې پياوړې او په سوريه کې بشپړه سوه. دغه هزار افسان هماغه يکهزار و يک شب ده چې نن ئې موږ په پښتو کې د يو زر و يوې شپې په نامه لرو او دا هم د پنچا تنترا په شان د نکل په منځ کې نکل لري. خو په دې توپير چې په پنچا تنترا کې په نکلونو کې د انساني ژوندون ممثلين ځاروي، ژوي او مرغۍ دي خو په يو زر و يوې شپې کې موږ ډېری برخه انسانان وينو چې د بسيا او هوسا ژوندانه د لټون په تکل کې دي چې ژبه او تومنه ئې مينه او موخه ئې د يار وصال دئ او تر څنگ ئې ځاروي، ژوي، پرياني، ديوان، پېريان، کبان او نور هم لرو. د پنچا تنترا او يو زر و يوې شپې نکلونه دواړه په تمثيلي ادب کې د هنر په ژبه د سياست او منطق زده کړه ده چې په لرغونو مهالونو کې د سلاطينو او شهزادگانو له پاره کارَول کېدل. پنچا تنترا لومړی ځل پښتو ته افضل خان خټک، ورپسې ابوالحسن هراتي او بيا شاد محمد خان د دبير دانش تر نامه لاندې ژباړلې ده. له دغو خبرو زما موخه د داستان بنسټيزه سوژه يعني منطق، مينه او سياست د تمثيلي ادب په نکل کې د نکل له لارې ده چې پرسوناژونه ئې له يو بله توپير لري چې دنکل په منځ کې بل نکل د هماغه وخت د منطق او ټولنيزو غوښتنو پر بنسټ منځته راغلي او په يو زر و يوې شپې کې ئې خپلې انگازې خپرې کړې.

**د نکلونو بنسټيز کرکترونه:**

د يو زر و يوې شپې د نکلونو په منځ او پيل کې موږ له شهريار سره مخامخ يو چې يو قهرېدلی غچ اخيستونکی پاچا دئ؛ شهريار د خپلې ښځې د خيانت له کبله قهرېدلی، خپله ښځه وژني او هوډ کوي چې هره شپه به له يوې باکرې پېغلې سره واده کوي او همدا ښځه به په سبا سهار وژني او هوډ ئې کړی چې دې لړۍ ته به د ژوند تر پايه دوام ورکوي. د شهريار وزير يا صدر اعظم يوه پېغله لور لري، دا پېغله له پاچا سره د واده کولو خطر پر ځان مني او پرېکړه کوي چې ځان او نورې ښځې به د شهريار له غضبه ژغوري. وزير خپلې لور شهرزادې ته دوه نکلونه وايي، هر نکل په خپل منځ کې نور نکلونه لري، وزير غواړي د دغو دوو نکلونو په ويلو د خپلې لور فکري لور بدل

کاندي او له شوني مرګوني ګوابنه ئې خبره کړي خو شهرزادۍ د پلار خبره نه مني او له شهريار سره واده کوي. شهرزادۍ د دنيازادي په نامه يوه کشرۍ خور لري، نوموړې د خپلي همدمې خور په مرسته له شهريار سره پر يوه ژمنه واده کوي چي شهرزادۍ به د واده د شپې له پيله تر سهاره شهريار پاچا ته نکل وايي او د دې ژوند او واده به هغه مهال پای ته رسيږي کله چي نکلونه ئې خلاص سي ؛ په دې توګه شهريار دا خبره ورسره مني.

د واده د شپې لومړنی نکل په زړه پوري دئ. شهرزادۍ خپل نکل د يوه سوداګر او يوه زاړه ديو په نکل پيلوي. سوداګر مزلونه وهي خو د ورځي په پای کي ستړی کېږي او د خپلي ستړيا د ايستلو له پاره يو چيرې دمه کېږي او يو څه خوري. د خوراک په لړ کي خرما خوري او د خرما يوه مندکه ايسته غورځوي، په دې لړ کي ناڅاپه يو زوړ ديو راڅر ګند سي او سوداګر ته وايي چي "تا د خرما د مندکي په ايسته غورځولو زما زوی مړ کړ نو اوس بايد تا مړ کړم". سوداګر ديو ته زاری کوي او ورته وايي چي: "د ژوند تر پايه به ستا مريی يم خو مه مي وژنه" په دې توګه د شهرزادۍ د ژوندانه برخليک او د سوداګر د ژوندانه برخليک دواړه چي نه ئې کوم جرم کړی او نه کومه خطا له يو بل سره په ورته والي موازي کېږي. دا نکل د واده په لومړۍ شپه نيم پاته کېږي او شهريار خپله نوې ناوې نه وژني او غواړي چي د نکل بله برخه په راتلونکې شپه واوري او د ورځي په اوږدو کي د خپلو سلطنتي چارو د سمبالولو له پاره راوزي او په دې ډول د نکلونو لړۍ تر يو زرو يوې شپې پوري دوام مومي؛ بله کيسه د لومړۍ شپې په شان ده چي د هري شپې په رارسېدلو شهريار بل نيمګړی نکل اوري، په څينو ځايونو کي خو خپله شهريار غواړي چي نکل دي نيمايي پرېښودل سي او په راتلونکې شپه به ئې بله برخه واوري او په دې ډول سوکه سوکه د خپلي بنځي اعدامول ځنډوي.

سره له دې چي د يو زرو يوې شپې نکلونه په خپله تومنه کي د عربي ترې د منځنيو سديو د فرهنګ خوند نغښتی لري مګر که ښه ورته ځير سو نو ګورو چي د ټولو نکلونو تومنه په بېلابېلو فرهنګونو کي داسي جرړي لري چي په بېلابېلو جغرافيوي سيمو او تأريخي پړاوونو کي خړوب سوي او لمنه ئې له هنده په راپيلېدلو تر لرغوني بين النهرين، بغداد، د منځنيو سديو تر فارس او د منځنيو سديو تر مصر او سوريې پوري ځغلي. د نړۍ ډېری شنونکي ټول په دې باور دي چي د يو زرو يوې شپې د نکلونو د پيلنيزي سرچيني اډانې د هندوستان په پراخه فرهنګي لمنه کي وده موندلې او بيا ئې نورو يادو سويو فرهنګونو ته خپل يون پيل کړی او هلته هر فرهنګ ورباندي خپلي اغېزې شيندلي او پراختيا ئې موندلې ده. د يو زرو يوې شپې د نکلونو لومړنۍ د پېژندلو وړ ليکل سوې نسخه د "هزار افسان" په نامه ليکل سوی کتاب دئ چي د ۲۲۵او ۲۵۰ز کلونو په ترڅ کي ليکل شوی دئ او همدا نسخه د ۸۵۰ ز کال په شاوخوا کي عربي ته ژباړل شوې ده. سره له دې چي د لسمي سدۍ عرب ليکوال المسعودي همدغې عربي نسخې ته د الف ليلة په نامه د اخذ په سترګه ګوري خو له همدې الف ليلة و ليله څخه اوس څه نه دي پاته او له منځه تللې نسخه ده. د يو زرو يوې شپې د نکلونو ټولګه د لسمي او شپاړلسمي سدۍ تر منځ د شپېږو سوو کالو په اوږدو کي له يو شمېر بدلونونو سره مخامخ شوې ده، خو تومنه ئې د منځني ختيځ د کليو، کورونو او ښارونو په مجالسو کي د مسلکي نکل ويونکو له پلوه ژوندۍ ساتل شوې ده.

**په اروپايي ژبو لومړنۍ ژباړې:**

د يو زرو يوې شپې نکلونه د نړۍ ډېرو ژبو ته ژباړل شوي دي. د دې نکلونو لومړنۍ اروپايي بڼه فرانسوي ده چي انتوان ګالان وژباړله. ګالان په ۱۷۰۴ز کال کي خپل کار په دوولسو ټوکو کي د Les mille et une nuits تر نامه لاندي راټول کړ چي هماغه د يو زرو يو شپو د نکلونو نوم دئ.

ګالان خپل کار د هغې نسخې له مخې وکړ چې په څوارلسمې یا پنځلسمې سدۍ کې په سوریه کې لیکل شوې وه. د ګالان همدا فرانسوي نسخه ډېر ژر په ۱۷۰۸ ز کال کې انګلیسي ته د Grub Street تر نامه لاندې وژباړل شوه. دا دواړې نسخې نیمګړې وې. په اروپا کې د دغو دواړو نسخو د ژباړو له خپرېدو وروسته اروپایي ادب پوهان د یو زرو یوې شپې د نکلونو د بشپړې لړۍ د موندنې په هڅه کې شول خو بریالۍ نه وې؛ خو د نولسمې زېږدیزې سدۍ په پیل کې په هند کې د ۱– Calcutta I، Calcutta II۲ -، Būlāq۳ - او ۴– Breslau څلور چاپي پېژندل شوې نسخې لاسته راغلې. په دې څلورو واړو نسخو کې د بالاق نسخه د مصري متنونو له مخې جوړه شوې او د کتاب اډیټر ورباندې نور نکلونه اچولي ول چې د یو زرو یو شپو ټولیزه شمېره وربانديې بشپړه کړي او همدا نسخه تر نن پورې د ټولو نکلونو له پاره یوه مهمه سرچینه ده. د دغو نسخو له موندلو وروسته ډېریو اروپایي ژباړونکو د نولسمې سدۍ د څلورو واړو نسخو ژباړې ته مخه واړوله چې په دوی کې دغه کسان د یادونې وړ دي:

١. ډاکټر جانتن سکات (۱۸۰۰ ز)
٢. ادوارډ ورتلي مونتګ (۱۸۱۱ ز)
٣. هنري تارنس (۱۸۳۸ ز)
٤. اډوارډ ډبليو لين (۱۸۳۸ – ۱۸۴۱ ز)
٥. جان پین (۸۴–۱۸۸۲ ز)
٦. ریچرډ اف. برتون (۱۸۸۵ز)
٧. اندریو لانګ (۱۸۹۸ز)
٨. جي. سي ماردرس (۱۸۹۹– ۱۹۰۴ز) او
٩. د ټولې نړۍ په اړوند په زړه پورې کتاب په جاپاني ژبه ۱۸۸۸ ز کال

د یادونې وړ ده چې د یو زرو یوې شپې ډېری نکلونه د هالیود د سیمنا پر پرده او وروسته د تلویزیونو پر سکرینونو د کارټوني فلمونو په بڼه راڅرګند شول. په فلمونو کې د هالیود د نړۍ نامتو فلمونه علاء الدین، سندباد او علي بابا او څلوېښت غله دي. لومړنۍ فلمي بڼه ئې په ۱۹۲۴ ز کال کې د "بغداد د غلو" په نامه یو فلم وو. دوهم فلم په ۱۹۲۶ز کال کې د " شهزاده احمد ماجرایي سفرونه" نومېږي. په ۱۹۵۲ز کال کې هالیود د The Golden Blade تر نامه لاندې د هارون الرشید د پېر یو فلم جوړ کړ چې پکښې خلیفه د خپل بدمرغي وزیر جعفر له منګولو څخه د بغداد د خلاصون له پاره خپله کوډګره توره کاروي. په ۱۹۵۵ ز کال کې د the son of Sinbad فلم جوړ شو په دې فلم کې د علي بابا او د څلوېښتو غلو داستان په یوه فلم کې راټول شوي دي، په زړه پورې دا ده چې په دې فلم کې غله ټول ښځې دي. په ۱۹۵۸ کې د The ۷ th Voyage of Sinbad، په ۱۹۷۴ز کال کې د The Golden voyage of Sinbad او په ۱۹۷۷ز کال کې د Sinbad and the Eye of the Tiger په نومونو فلمونه جوړ شول. له همدغو فلمونو سره جوخت په سلهاوو هنري فلمونه د نړۍ په بېلا بېلو برخو کې جوړ شول چې یو شمېر ئې هنري فلمونه او یو شمېر کارټوني فلمونه ول او دلته نه شم کولای د ټولو نومونه راواخلم. همدا شان د بي بي سي د انګلیسي راډیو په ګډون د نړۍ په بېلابېلو برخو کې د یو زرو یوې شپې نکلونه څه د راډیویي تیاتر او څه ئې هم د راډیو داستان په بڼه د راوي له ژبې خپاره شول. په تلویزیونو کې د یو زرو یوې شپې بشپړه بڼه د لومړي ځل له پاره په تورکیه کې د Binbir Gece په نامه جوړ شو. وروسته د هندوستان او پاکستان په تلویزیونو کې د الف لیلی تر نامه لاندې بشپړې بڼې ئې د تلویزیوني سریالونو په ډول جوړې شوې.

د یادونې وړ ده چې له ۱۸۰۰ ز کال را په دېخوا د یو زرو یوې شپې نکلونه د اروپا په اوپراګانو کې په موزیکال ډول هم جوړ شوي دي. د یو زرو یوې شپې نکلونو او د آسیا د ادب په لمن کې د تخیل پر آس د سپرو شاعرانو د شعرونو ژباړو د اروپا د ادب د رومانیزم بڼو نه خروب کړل، همدغو ژباړو د اروپا د رومانیزم مخ او رنګ له یوه

مخې بدل کړ.
نوري ژباړې ئې وروسته په هسپانوي، ایتالوي وشوې. همداسې په هندي او د نړۍ په ډېرو نورو ژبو وژباړل شو. او دا دئ اوس موږ د یو زرو یوې شپې بشپړ پښتو متن لرو چې د پښتانه د فلکوریک ادب له پاره یوه لویه بې سارې پانګه ده.

په دغو ژباړو کې د جان پین ژباړه لومړنۍ بشپړه انګلیسي ژباړه ده. همدا ژباړه له زښت ډېر خیروالي برخمنه ده او تر څنګ ئې مفصلې شرحې لرې چې تر نن پورې د خپل ارزښت په ساتلو په اروپا کې یوه مهمه نسخه ګڼل کېږي خو په دې نسخه کې هغه برخې ئې په ژوره ښه چاڼ او ایستل شوي چې د هغه مهال د ویکټوریا د سلطنتي کورنۍ له دودونو سره ئې حساسیت درلود. خو د جان پین د ژباړې په پرتله د ریچرد برټون ژباړه له ډېرو اړخونو په نکلونو کې د خیال او عجایباتو او د عشق د نړۍ پر اړخونو راڅرخي. په اوسمهال کې د یو زرو یوې شپې د نکلونو دوې انګلیسي ژباړې دي چې په لوېدیز کې ئې د فلسفې، فیلالوژۍ او د عربو د تأریخ زده کوونکي لولي؛ لومړۍ هغه ئې د عراقي الاصله امریکایي محسن مهدي ژباړه ده چې په ۱۹۸۴ز کې ئې کړې او دوهمه هغه ئې د حسین حطاوي ده چې په ۱۹۹۰ز کې ئې کړې او دا دواړې انګلیسې ژباړې د The ۱۰۰۱ Nights تر نامه لاندې په لوېدیز کې تر ټولو ښې ژباړې ګڼل کېږي. د حسین حطاوي ژباړه په سوریه کې د څوارلسمې سدۍ د نسخو د الف لیلة و لیلة پر بنسټ ده چې محسن مهدي ورته اصلاح کړې ده. همدا کتاب په نورو ژباړو کې د The Arabian Nights یا د عربي شپو تر نامه لاندې هم پېژندل کېږي.

**د یو زرو یوې شپې نکلونه څه وایي؟**

د یو زرو یوې شپې نکلونه د بشري ژوندانه بنسټیز اړخونه لکه مینه، خوشحالي، برخلیک یا تقدیر، ژوند، مرګ او ابدیت په داسې یو په بل کې پېیل شویو نکلونو کې رانغاړي چې په یوه پراخ جغرافیوي چاپېریال کې فرهنګي او ژبنۍ پولې ماتوي. یو زرو یوه شپه د معنوي ژوند یو شمېر ډېر رانغاړي او په څرګنده وایي چې په داسې یوې نړۍ کې څنګه ژوند وکړو چې په هغه کې ښه او بد دواړه له یو بل ګډ شوي دي، دلته د ښو او بدو کرکټرونو استازیتوب کوډګرې ښځې او نارینه، ښه او بد دېوان، خائن، ظالم او مهربان واکمن په داسې یوه پېیل شوې داستاني ژبه کوي چې لوستونکی او اورېدونکی د حقیقي او خیالي نړۍ تر پولې پورې رسوي او د نکل اغېزمنتوب د همداسې نړیو په داستاني انځور کې دئ چې اورېدونکی یا لوستونکی کرار کرار له ځان سره اخلي او د خیالاتو او توهماتو هماغې پېچلې نړۍ ته ئې بیایي چې له راوي یې اوري. همدا شان د یو زرو یوې شپې نکلونه د انساني غریزې د مینې هغه اړخونه رانغاړي چې هیڅ انسان ورڅخه تېښته نه لري او هم د معنوي فضیلت ډېر په خپلو نکلونو کې بیانوي. د نکلونو په بنسټیزه باندنۍ اډانه کې شهرزادۍ ده چې د عدالت، جنسي څواک او بخښنې په استازیتوب راپورته شوې، حتمي مرګ پرځان منې او د نکل ویلو د هنري وړتیا په لرلو د شهریار پر مرګونې لوبه بریمنه کېږي. همدغه اړخ د بېلابېلو نکلونو ختّه او تومنه جوړوي. سره له دې چې د یو زرو یوې شپې نکلونه د ژوندانه ډېرې برخې په داستاني ژبه رانغاړي خو د نکلونو بنسټیزه تومنه په ټولو نکلونو کې د انساني څواک پر شپول راڅرخي. په نکلونو کې د سلاطینو مطلقه څواک په ښه ډول ښودل شوی دئ او په ډېریو نکلونو کې د همداسې مطلقه څواک داستاني انځور راڅرګند شوی دئ. د نکلونو

بله په زړه پورې برخه ښځینه څواک دئ – او ډېری ئې د مینځو او کنیزو په انځورونو کي ښودل شوي او هغو نارینوو ته باید غاړه کښېږدي چي د دوی څښتنولي پر غاړه لري خو له دې سره سره بیا هم همدغه مینځې او کنیزاني دومره څواکمني دي چي د ژوندانه پر ډېریو ناخوالو باندي په آسانۍ بریالۍ کېږي؛ د ښځو بله بنسټیزه ونډه د شعر ویلو، رباب وهلو او سندرو په څواک کي ده چي له شاه او امیره نیولې تر گدا پوري ورته گوته په غاښ کېږي. د نکلونو بل په زړه پوري اړخ عدالت او بخښنه ده او په ډېریو نکلونو کي هر نکل په دې پیام پای ته رسېږي چي ښه والی هرو مرو پر بدیو باندي برلاسېږي. او په خپله د نکلونو د راوي یعني شهرزادۍ ونډه ده چي په پای کي د شهریار پر جبر بریالۍ کېږي او نه یوازي ځان بلکي ډېري نوري پېغلي نجوني د هغه له شرارته ژغوري او په پای کي په خپله شهریار ښودل کېږي چي په خپل ټول څواکمنتوب دې ته اړ یږي چي عدالت، انسانیت او بخښني ته غاړه کښېږدي. په حقیقت کي د یو زرو یوې شپې بنسټیز پیام د عدالت له پاره هلي ځلي دي خو په داسي یو انځور کي چي عدالت ته رسېدل د میني او منطق په وسله تر سره کېږي نه د جبر او جنگ له لاري.

د یو زرو یوې شپې نکلونه د پرله پسې او له یو بل سره د تړلو نکلونو په منځ کي د بل نکل جوړښت لري. د نکلونو اوږدوالی له یوه نکله تر بله توپیر لري، ځیني ئې څه نا څه اوږده او ځیني ئې زښت ډېر لنډ دي او کله ناکله په نکلونو کي یوه ټوکه هم د نکل په بڼه راغلې ده.

**له نیستۍ تر شتمنۍ :**

د یو زور یوې شپې نکلونه هغه نکلونه وړاندي کوي چي ډېری ئې له یوه بې وزلي سړي څخه لوی شتمن جوړوي، د بې وزلي له کندي څخه ئې لاس نیسي د ښېرازۍ او سمسورۍ تر پولو ئې رسوي. دغه ځانگړتیا د نورو کیسو په منځ کي د علاءالدین او د علاءالدین په لمپې، د علي بابا او د څلوېښتو غلو، د سند باد او د هغه په اوو سمندري سفرونو کي، د یحیی بن خالد البرمکي او د غریب سړي په نکل، د مځکني عبدالله او دریابي عبدالله په نکل او د موچي معروف په نکل کي په ځرگند ډول په سترگو کېږي. په هر یوه دغو نکلونو کي د نکل د مرکزي کرکتر له لږ او لنډکۍ شرحي وروسته مرکزي کرکتر د بخت او اقبال په ملگرتیا د خپلو هڅو له مخي په ټولنه کي سر راپورته کوي او د سلیمان علیه السلام د گوتي، د پیریانو او دیوانو، کوډو او نورو له لاري ځان د مقصود ساحل ته رسوي. ډېری داسي کرکترونه له ښه بخت او اقباله برخمن دي خو د بریا تر پولو پوري د رسېدا له پاره دې ته اړ دي چي د بخت د ترلاسه کولو په لاره کي ځان اور او اوبو ته واچوي. ښه بېلگه ئې د ټول نکل وروستۍ برخه یعني د موچي معروف نکل دئ چي د خپلي شریري ښځي فاطمې د شرارت او د هغې د مادي غوښتنو له اسیته ښار پرېږدي چي دی ئې په خپل ټول وس د بشپړولو توان نه لري او اړ یږي چي له ښاره و سارا ته وتښتي. په سارا کي په یوه کنډواله کي پناه اخلي او هلته خدای ته دعا کوي او یو ناڅاپه څوک پیدا کېږي او ورته وایي چي څه وکړم، موچي ورته وایي یو بل ښار ته مي بوزه. دی بل ښار ته راوستل کېږي او هلته د خپل ماشومتوب ملگری مومي چي د همدغه ښار لوی سوداگر دئ. لنډه دا چي موچي د ښار سوداگر ان د ښار تر

پاچا پوري په دي منتظروي چي ګنې نن سبا ئې مالونه رارسېږي او څان دومره غټ سوداګر ورپېژني چي د څو څو شاهانو خزانې د ده شتمنۍ ته هيڅ دي خو دی په لاس کي هيڅ نه لري. د پاچا له لور سره د واده په څوومه شپه له ښاره وزي او تر څو ورځو مزل وروسته وږی تږی کېږي او يوې کروندې ته ځي چي يو بوډا کروندګر پکښې کار کوي او ورڅخه اوبه او ډوډۍ غواړي. کروندګر ښار ته ځي چي ده ته ډوډۍ راوړي او موچي د کروندګر پر ځای د ده مځکه قلبه کوي چي ناڅاپه د کروندې په منځ کي له يوې ډبري سره مخامخ کېږي، ډبره راپورته کوي او کښته ځي. وروسته له ستري خزانې سره مخامخ کېږي او په خزانه کي يوه ګوتمۍ ده دا ګوتمۍ په لاسوي چي ناڅاپه يو ديو را پيدا کېږي او ورته وايي چي ته اوس د دې ګوتمۍ څښتن سوې او دا د عاد خزانه ده او زه ستا مريی يم. په دې توګه موچي د ديوانو په مرسته لومړی بې شميره سوداګريز توکي برابروي او بيا خزانه او توکي دواړه هماغه ښار ته وړي او ټول هک پک کوي.

**بخت او ښې طالع:**

د نکلونو له ډېريو کرکترونو سره ناڅاپه بخت او طالع دواړه ملګري دي او همدا بخت او طالع دي چي دوی د مادي ژوندانه د بريا تر پولو رسوي. ښه بېلګه ئې همدا د موچي نکل دئ چې ناڅاپه الهامي مرسته ورسره کېږي او بيا د عاد پر پانګه او د هغه پر ګوتمۍ برابر بېږي او ديوان ئې مرستي ته وردانګي. يا د سند باد د اوو له ماجراوو ډک د نه منلو سمندري سوادګريز سفرونه دي چي په هر سفر کي ئې کښتۍ درې وړې کېږي او دی په خپله پر خطرناکو ټاپوګانو پيښېږي خو بخت او طالع دواړه ورسره ملګري دي او دومره پانګه ئې لاس ته ورځي چي شمېر ئې ناڅرګند دئ. او يا د علي بابا او څلويښتو غلو نکل دئ چي يوې سمڅې ته رسېږي، په دې سمڅه کي لويه پانګه پرته ده غله دا پانګه نه سي تر لاسه کولای څکه يوازي علي بابا ئې د پرانيستلو په چل پوهېږي. په دې توګه په داسي نکلونو کي لوستونکي او اورېدونکي ته د بخت او طالعو څواک څکه ورښوول کېږي چي کېدای شي د بخت او طالعو دروازه د هر چا پر مخ خلاصه شي او دا ئې د تخيلي راښکون او انجذاب يوه لويه برخه ده.

**د خطر منل او په ماجراوو پسي راوتل:**

دا ځانګړتيا په ټولو نکلونو کي د يوه ګډ ټکي په توګه ليدل کېږي. په هيڅ يوه نکل کي نه دي ليدل شوي چي د نکل مرکزي کرکتر دي د هر ډول څرګند او ناڅرګند ګوابښ په نه منلو څان له پېښي دباندي وباسي بلکي خپلي موخي ته د رسېدا له پاره پر ځان هر ډول ګواښونه مني. يوه بېلګه ئې همدا د سند باد د اوو سمندري سفرونو نکلونه دي چي سند باد نه يوازي په سمندر کي بلکي په بېلابېلو ټاپوګانو کي له عجايبو او ګواښونو سره مخامخ کېږي خو د بخت او طالعو په ملګرتيا ځان د بريا پولي ته رسوي. يا په سمندر او اوبو کي د سمندري او ځمکني عبدالله نکل چي ځمکنی عبدالله په سمندر کي د کبانو له داسي نړۍ سره مخامخ کېږي چي د انسانانو په شان ټولني، ښارونه او شاهان لري او نور؛ همدا کبان ده ته قيمتي مرغلري له سينده راباسي او د ده پانګه دومره ډېرېږي چي د ښار لوی لوی ماړه او شتمن ورته هک پک کېږي. په ټولو نکلونو کي د نکل مرکزي کرکتر له بې

شمېرو خنډونو سره مخامخ کېږي په دغو خنډونو کي د نکل اتل خپل عقل او چالاکي، آزمايي او ځان له ګوابښه باسي چي بخت تل ورسره ملګری دئ. په هر نکل کي دننه بل نکل دئ او په هره ماجرا کي دننه بله ماجرا زېږول کېږي او په دې سره لوستونکی يا اوريدونکی داسي يوې خيالي نړۍ ته له ځان سره بيايي چي ګومان کوي په خپله د دې ماجرا يوه برخه ده او د نکل ښکلا په همدې کي ده.

**حرص:**

په ټولو هغو نکلونو کي چي تومنه ئې د شتمنۍ او پانګي پر چورليځ راڅرخي څرګنده ده چي حرص د انساني غوښتنو د يوه عنصر په توګه سر راپورته کوي او د نکل اړوند کرکترونه پکښې په بېلابېلو بڼو ښکېل کېږي. په دغو نکلونو کي د مرکزي کرکتر په وړاندي سيال /انتاګونيست مضره موجودات دي او په نکلونو کي د دغو مضره موجوداتو ونډه يا نقش د دوی خپل حرص دئ. خو د نکل متن هغه مهال لا په زړه پوري کېږي چي دا مضره موجودات د نکلونو د مرکزي کرکترونو له حرص سره مخامخ کېږي. او په ډېريو ځايونو کي همدا انساني حرص دئ چي د داستان اتل ته د ورپېښې شوي ګوابښ د ژرغوني لامل ګرځي. په ډېرو لږو نکلونو کي د نکل انتاګونيست پر پروتګنيست يا مرکزي اتل باندي برلاسه کېږي. په نکلونو کي د انتاګونيست او پروتګنيست توپير په دې کي دئ چي په اکثريتو نکلونو کي پروتګنيست د خپل ژوندانه د ښه کولو له پاره د پانګي د موندلو په لټه کي دئ خو سولند او حريص انتاګونيست سره له دې چي ډېره پانګه ئې په لاس کي ده بيا هم نوره غواړي او نه پرېږدي چي د پانګي يوه برخه د پروتګنيست لاس ته ولوېږي او يا ئې ورسره شريکه کاندي. د يو زرو يوې شپې د نکلونو په هر مور او کږلېچ کي چي وګرځو وينو چي هر نکل د شتمنۍ او پانګي د موندلو او لټون بيان دئ.

**مېلمه پالنه:**

د نړۍ په ډېريو کلاسيکو فرهنګونو او ادبياتو کي مېلمه پالنه د يوه سپېڅلي دود په بڼه ستايل شوې ده. سره له دې چي د دغو نکلونو په ټولګه کي مېلمه پالني ته په ځانګړې توګه کومه څرګنده نغوته نه ده شوې او يا په نکلونو کي داسي نکل نه وينو چي هغه دي په ځانګړې ډول د مېلمه پالني پر چورليځ راوڅرخي خو له دې سره سره بيا هم مېلمه پالنه په هر نکل کي د نکل د يوه مهم عنصر په توګه راڅرګندېږي. ښايي يو لامل ئې د ترانسپورت او له سيمي څخه و بلي سيمي ته د تګ راتګ ستونزي وي چي مېلمه پالنه په کلاسيک فرهنګ کي د مهم عنصر په توګه راڅرګندېږي. په دغو نکلونو کي ميلمه پالنه له يوې لويي ټولني سره د داستان د کرکترونو د تړاو په توګه ځان راڅرګندوي. د دغي ځانګړتيا يوه لويه بېلګه بيا هم د سمندري سندباد مېلمه پالنه ده چي پنډې سند باد ته ئې د هر نکل په پای کي ورکوي، او يا د بېلابېلو خلفاوو په دربار کي راغلو مېلمنو ته د پرېمانو خلعتونو ورکړنګ، ټول د ميلمه پالني او ځوانمردۍ پر عنصر راڅرخي. خو په همدې لړ کي د داستان پروتګنيست غواړي بې وزلي ته وښيي چي د ژوندانه په هر ګوابښجن مور کي له څومره ناخوالو او سختيو سره مخامخ شوی او په څومره خوارۍ ئې موندل شوې پانګه تر لاسه کړې ده. همدا شان سمندري

سند باد په خپله د خپل یون په ترڅ کې په ټاپوګانو کې د عجایباتو د بېلا بېلو سلاطینو او مشرانو له مېلمه پالنې سره مخامخ کېږي. د مېلمه پالنې د دغه عنصر ټومنه په ټولو داستانونو کې یو شان نه ده په یو شمېر نکلونو کې مېلمه له کوربه یا خپل مېلمه پال سره خیانت کوي، یوه لویه بېلګه ئې د بغداد د علي بابا او د څلوېښتو غلو نکل دئ چې د غلو مشر د علي بابا له مېلمه پالنې څخه ناوړه ګټه اخلي او په پای کې مري. په دې توګه د یو زرو یوې شپې په نکلونو کې مېلمه پالنه د یوه سپېڅلي دود رنګ غوره کړی دئ.

**سخاوت:**

د نکلونو یوه لویه برخه سخاوت ته ځانګړې شوې ده. دا سخاوت په ټولیز ډول د خلفاوو یا عیارانو او ځوانانو په لاس تر سره کېږي او ښیي چې هر خلیفه او هر ځوان څومره په سخاوت کې خلاص لاس لري. بېلګې ئې په ۲۶۹ شپه پنځم ټوک کې د حاتم طایي، یا ورپسې د معن بن زائده د سخاوت په نکل کې له ابراهیم سره د یوه نایي یا دلاک سخاوت او نورې په لسګونه بېلګې وینو چې نکلونو ته ئې رنګارنګوالی ورپه برخه کړی دئ.

**سیالي:**

په یو شمېر نکلونو کې موږ له څو پروتګنیستانو سره مخامخ کېږو چې موخې ته د رسیدا له پاره د ګواښونو په منلو په خپلو منځو کې سیالي کوي او کله نا کله یو بل ته خنډونه جوړوي، په ډېریو داسې نکلونو کې موخه د سپوږمۍ په شان محبوبې ته د رسېدو تنده ده. په دغسې سیالیو کې سیالان خپله وړتیا او تعقل آزمایي چې همدا وړتیا ئې د محبوب تر وصاله پورې رسوي. د یو زرو یوې شپې په نکلونو کې سیالۍ د څواک او وړتیا د زباد له پاره ښه ستایل شوې ده او په ډېریو نکلونو کې ئې غبرګون موندلی دئ.

**د نکل ویلو ځواک او وړتیا:**

د یو زرو یوې شپې په ټولو پرله پسې نکلونو کې نکل ویل په خپله د نکل ویلو یو ځواک او د وړتیا یو مهم عنصر دئ. د همدغو نکلونو په اډانه کې شهرزادۍ په دې باور ده چې د دې د نکل ویلو ځواک، وړتیا او چلونه کولای شي نه یوازې دا په خپله بلکې نورې پېغلې د دې د مېړه د شوني مرګ له لومې څخه وژغوري. په ټولو نکلونو کې د شهرزادۍ دغې ننګېرنې او احساس ته جوت غبرګون ورکړ شوی چې نکل ویل نه یوازې د ساعت تېرې یوه وسیله بلکې داسې یوه ځواکمنه وړتیا ده چې څوک په پای کې په خپل چلند او کړو وړو کې بدلولای شي.

یو زرو یوه شپه اوس د پښتانه فولکوریک ادب ته په زښت پیاوړې او بې ساري بیاني قوت چې هم خوږ او هم په آسانه د پوهېدا وړ دئ راغلې ده، د جهاني صاحب د خبرې پر بنسټ خدای (ج) دې پښتنو ته دوني پوهه او لېوالتیا ور په برخه کړي چې د استاد محمد معصوم هوتک دغه بې ساری ادبي شهکار ولولي او پوه شي چې موږ ټول د محمد معصوم هوتک د زیار او هڅو پوروړي یو. دا پور هم د دغه ښکلي اثر په اړوند د مقالو په لیکلو او هم د دغه اثر په ترلاسه کولو او لوستلو اداء کېږي او په کار خو لا دا ده چې هر پښتون او د پښتنانه په ادب مین پښتون ئې باید په خپل کاله کې ولري. هغه کسان چې په خپل کور کې کورني کتابتونونه لري دا دي په یاد ولري چې د داسې ادبي شهکار له شتون پرته ئې کتابتون نیمګړی دئ. دا اثر د هرې پښتنې کورنۍ او هرې دېرې له پاره دئ. دا اثر له شک پرته کولای شي زموږ د پښتني ټولنیز ژوندانه د فولکوریک بڼ پر ډېرو اړخونو ښښتلې اغېزه پرېباسي. راځئ ټول په ګډه د استاد هوتک صاحب دا شهکار ولمانځو.

پای

 څېړندوی شېرشاه رشاد

# د پښتو د پیاوړي شاعر او خواریکښ څېړونکي خدای بخښلي مجید بابي د مثمره ژوندانه څو ښېګڼې

په انساني ټولنه کې راز راز انسانان ژوند کوي ځیني ئې د ځان له پاره غواړي ژوند وکړي، ځیني بیا د نورو خدمت او چوپړ ته ژوند ځانګړی کوي. ځیني د ژوند ګرده ښې او ښادۍ په دې دنیا پورې تړي، خو ځیني بیا د دې دنیا هر څه د بلې دنیا توښه ګڼي او هر عمل او کړه وړه ئې، سترګیا او ستومانۍ ئې، فکر او ذهن ئې د نورو له پاره د خیر او ښېګڼې په نیت بوخت وي. دا ډله انسانان روحاً ځان ډېر آرام او هوسا ګڼي، د خپل خالق رضائیت ئې موخه وي او د مخلوقاتو په زړونو کې ئې هم خاص ځای نیولی وي. د هنر څښتنان هم تل دا هڅه کوي چې په خپلو ښکلو هنري ایجاداتو سره تل په ټولنه کې ژوندي واوسي، دا ځکه چې د دوی آثار او نېکي کړني د ده نوم تلپاته ساتي او خلک ئې پر یادوي.

له دې ډلې څخه یو هم د پښتو پیاوړی شاعر او خواریکښ څېړونکی خدای بخښلی مجید بابی وو. له دې نېک نظره او نېک عمله انسان سره ما هغه وخت اوله پلا ولیدل کله چې تنظیمي شخړو او جګړو له کابله راپه مخه کړو او کندهار ته راغلو.

د ده خوشحاله او متواضع څېره او نېک خُلق په لومړي لیدو سره د چا په زړه کې ځای نیوی. ما او ده ته په کندهار ټلویزیون کې یوه خپرونه "د تاریخ پاڼه" په نامه راسپارل سوې وه چې زیاتره به مو د دې خپرونې د موادو د راټولونې له پاره سره لیدل او پر موضوعاتو باندې به مو خبرې کولې. له ټلویزیونه تر چارسو پورې به زیاتره سره ملګرې پر پښو رهي وو او یوه خبره ئې په وارو وارو کوله: موږ عجب خلک یو چې جګ جګ ځې وایي کورو ته ګورې چې کروپ کړوپ ځې وایي ... غلا کوي. په یوه حال موږ راضي نه یو، خو په حقیقت کې له جګه او کړوپه څخه دلته د افراط او تفریط حالت دئ انسانان باید اعتدال خوښوونکي وي او د خپلې ټولنې او کورنۍ په چارو کې هغه کړه وړه غوره وګڼي چې نه پکښې زیاتی وي او نه پکښې کمی. دغه ځانګړنه په خدای بخښلي بابي کې هر چا لیدلې او مشاهده کړې ده.

د ده فطري او هنري استعداد څو اړخه درلودل. خورا خوږه او پخه شاعري ئې کړې ده او دقیق او خواریکښ څېړونکی وو. د خپل تاریخ د ناځرګندو پاڼو او موضوعاتو د راسپړلو او څوانانو ته د بیانولو له پاره ئې هم ځانګړې لېوالتیا درلوده او تل به د تاریخي کتابونو او آثارو په لټه کې وو.

د خدای بخښلي بابي په تاریخي لیکنو کې بله ښېګڼه دا وه چې پر مسایلو ډېر مستند ږغېدی او موثقي خبري ئې کولې او د خپلو خبرو او اظهاراتو له پاره ئې منابع او مأخذونه هم ښوول. هیڅ خبره ئې بې دلیله او بې سنده نه وه. تاریخ یا اجتماعیات نه یوازې د ده رشته او مسلک وو، بل لا ده د زړه له کومې له تاریخي مسایلو سره مینه درلوده او د تاریخي موضوعاتو په موثقو بیانولو کې ئې دا ګټه لېدله چې خپل اولس او خلک په خپلو تاریخي افتخاراتو خبر کړي، ګوندې ځوانان له نورو تمایلاتو راوګرځوي او د تحریف سویو تاریخونو په اضرارو او تاوانونو ئې پوه کړي.

د ده د لیکنو ژبه خورا سلیسه او روانه ده، ډېر پېچلي او ګونجلک موضوعات ئې په داسې ساده کلیمو او بیان سره توضیح کول چې د هر چا به ورسره مینه ډېرېده او تر پایه پورې ئې له لوست او مطالعې څخه نه ستړی کېدی. موضوعات به ئې داسې پرله پېیلي او اوډلي ول لکه ژوندۍ صحنې چې د لوستونکي د ستر ګو مخ ته تېرېږي.

د تاریخي لیکنو دا لړۍ ما په ۱۳۷۱کال کې لېدلې وه. تر دریو – څلورو میاشتو پورې چې زه په کندهار کې وم، لیکنې به نې د تلویزیون د خپروني له پاره لېږلې او ارشیف به ټولولې. خو اوس خبر نه یم چې دا لیکنې به خوندي پاته وي او یا به د هغو کومه کاپي د ده له درنې کورنۍ سره خوندي وي که یا؟

زما دوستانه غوښتنه او هیله به دا وي که چیرې دغه لیکنې راټولې سي او د ده د یو تاریخي اثر په بڼه چاپ سي ډېر غنیمت کار به سوی وي. بله ښېګڼه ئې د خپلو پخوانیو پوهانو او د درنو مشرانو په درنښت یادول او د هغو خاطر ته په درنښت کتل وه، ښه به مو په یاد وي چې څو پلا د اطلاعاتو او کلتور د ریاست د مځکې د خرڅلاو خبره او پر ځای ئې د یو مارکېټ د جوړېدو مسئله راپورته سوه، خو په کراتو کراتو ده خپله له دې خبرې سره مخالفت کړی دئ او کله ئې له نورو مشرانو څخه هم په دې برخه کې مرسته غوښتې ده او ده به تل دا ویل هغه ځای چې د مولوي صالح محمد هوتک، لوی استاد علامه حبیبي، بابا عبدالعزیز، یوسف ایازي، قیام الدین خادم، محمد شاه ارشاد، اغامحمد کرزي، ایوبي، عطایي، ځلمي او د داسې نورو په ناسته مشرفه سوی دئ نه غواړم په څو خوشمرو په مارکېټ غوندې ځای واړوم. که د ده دا ټینګار نه وای اوس به ډېر پخوا د ویاړ او برم پر دې ځای باندې په ظاهره ښکلې ودانۍ خو په باطن کې د څو مادي پرستو او زرپرستو د چړچو مرکز وای.

بله ښېګڼه ئې دا هم وه چې د خپلو حقدارو او د کمال د څښتنانو د آثارو د خوندیتوب له پاره ئې په خپلو ډېرو محدودو او شخصي امکاناتو زیار ایستی چې د دوی آثار له ورکې او هېرې وساتي. په دې لړۍ کې د ارغنداو د جهلاوور د پښتون فردوسي صاحبزاده میرغلام حیدر ناصر د مناظرو د کتاب چاپ وو. ډېری حاضرین به د دې صحنې شاهدان وي، چې د میر غلام حیدر ناصر زوی میر محمدعیسی اخوندزاده په لوېدلي حال او د ستر ګو په خوړ اخته حالت کې یه د خپل پلار کتاب یا کتابونه په غېږ کې له جهلاووره و ښار ته راتلی او خدای بخښلي بابي صاحب به یو څوک ورته ګومارلی وو چې د مناظرو کتاب په لاس ځني ولیکي او بیا ئې چاپ ته تیار کړي چې په دې زیار کې د ځوان څېړونکي او ادبیاتو استاد ګران مطیع الله روهیال نوم هم هېرولای نه سو.

پاته په (٦٦) مخ کې



مطیع الله روهیال



# د اروابناد بابي په لیکنه کي د نیولوجیزم ونډه

د ژبو په روزنه او پالنه کي د ژبي اصلي ویونکو لویه ونډه لري. که د ویونکو لوی جمعیت د عوامو او خواصو پر کټګوریو وویشو، نو د خواصو مسئولیت به نسبت عوامو ته څو برابره وي. د ټولني په خواصو کي د هغې ټولني عالمان، پوهان، لیکوالان، شاعران او په علمي و فرهنګي مسائلو خبیر افراد ټول شامل دي، چي د ټولني د سمون او اجتماعي نظام د اصلاح او برابرۍ له پاره کار کوي.

د خواصو ډله د خپلو تحقیقاتو، لیکنو، ترجمو او شعرونو په وسیله غواړي ژبي ته ترقي و تعالي وروبخښي، په دې لاره کي د دوی هڅي او کوښښونه د ژبنیو موضوعاتو له پاره اصول او پرنسیپونه ټاکي او عوامو ته ئې د تطبیق او عملي کولو له پاره لاربښوونه کوي، دا نو په عوامو پوري اړه لري چي څونه د خپلي ژبي سره علاقمندي او خواخوږي لري او په څه ډول د خپلو عالمانو او پوهانو ټاکلي اصول او پرنسیپونه عملي کوي؟

د ژبنيو موضوعاتو پالنه او روزنه د شاعر او ناظم آر مسئوليت نه دئ، دوی فقط د خپلو پيغامونو د ښې افادې له پاره له ژبنيو توکو څخه استفاده کوي، او د دغو توکو په استعمال سره خپل کلام ته ښکلا بخښي. د شاعر او ناظم تخليقات په غير مستقيم ډول پر ژبنيو موضوعاتو تاثير لري، او له دغه تاثيره څخه د ټولني ټول افراد متاثره کېږي، دا چې ژبه هم يوه ټولنيزه پديده ده، نو د شاعرانو له تاثيره څخه خوندي نه پاته کېږي.

د ژبپوهني په برخه کي د ډېر نورو موضوعاتو تر څنگ يوه هم د نوو لغتونو جوړول او وضع کول دي. په هره ژبه کي د نوو مفاهيمو له پاره نوي نومونه ټاکل کېږي. په يوه ژبني چاپېريال کي د مجردو نومونو ټاکل يوه زړه او پخوانۍ پروسه ده، خو د نومونو او اسماوو ترکيبي او اشتقاقي بڼه د نوي ژبپوهني زېږنده موضوع ده. که د نوي ژبپوهني له نوني څخه دغي موضوع ته وکتله سې، زوړوالی ئې يو نيم قرن ته رسېږي. دې برخي ته په ژبپوهنه کي د نيوليوگيزم يا نيوليوجيزم اصطلاح کارېږي. د نيولوجيزم په باب استاد محمدمعصوم هوتک داسي نظر لري:

"په ژبه کي د نوو لغتونو جوړول له بابا ادمه تر دې دمه پوري يو معمول دود دئ. د نوو اختراعاتو او کشفياتو او نوو مفاهيمو له پاره هر قوم او د هري ژبي ويونکو نوي لغتونه جوړ کړي دي. د لغت جوړولو له پاره په نننۍ ژبپوهنه کي د نيولوگيزم يا نيولوجيزم neologism اصطلاح کارېږي. نيولوگيزم هغه لغت، اصطلاح يا عبارت ته ويل کېږي چي نوی جوړ سوی وي او زياتره پر يوه نوي مفهوم باندي دلالت کوي يا يوې زړې اصطلاح ته نوی ژبنی رنگ ورکوي. نيولوگيزم د اختراعاتو، نوو پديدو يا هغو زړو مفاهيمو د پېژندلو له پاره گټور دئ چي په يوه نوې کلتوري قرينه کي واقع سوي وي. د نيولوگيزم يو مثال e-mail دئ چي موږ ئې په مدني ټولنو کي د انټرنيټ په برکت له نامه سره ډېر اشنا يو. د تعريف له مخي هر نيولوگيزم بايد نوې بڼه ولري خو کله کله په مستقيمه توگه ځانگړو اشخاصو، نشراتو او يا يوې حادثې ته منسوب وي. د نيولوگيزم اصطلاح د اتلسمي ميلادي پېړۍ په شاوخواکي رامنځ ته سوه". (هوتک، محمدمعصوم: پر معياري ژبه د معيار په ژبه يوه څېړنه: ۸۰مخ).

د نوو لغتونو جوړول او وضع کول که تر ډېره ځايه پوري په ژبپوهانو او هغو ټولنو پوري اړه لري چي د يوې ژبي له پوهانو او عالمانو څخه جوړه وي او زموږ ځيني ژبپوهان په ژبنيو مسائلو کي تصرف يوازي د هغو کسانو حق بولي چي په دې ساحه کي لوړي زده کړي او مشخص کاغذي اسناد ولري، خو استاد پالوال هر مستعد شخص ته د دې جواز ورکوي چي د خپلي ژبي د پرمختگ له پاره کار وکي، د ټولني په مستعدو کسانو کي ليکوال، شاعر او ژبپوه او په فرهنگي مسايلو لږ و ډېر پوه او خبير کسان ټول راتلای سي.

اروانښاد عبدالمجيد بابی د پښتو ژبي ليکوال او شاعر وو. د شعر او ليکني تر څنگ ئې

کله ناکله له فارسي ژبې څخه ترجمې هم کړې دي. زما د معلوماتو له مخې ئې په ترجمه کړو آثارو کې د ځينو مقالو تر څنګ د ميګرين يا نيم سيري (د سر درد) په باب يوه رساله ډوله اثر هم له فارسي څخه ترجمه کړی دئ، خو متاسفانه تر اوسه ناچاپه پاته دئ.

اروابناد بابې د خپلو ادبي او فرهنګي هڅو تر څنګ د ژبې مسائل هم له پامه غورځولي نه ول. د يوه مستعد انسان په توګه ئې د نوو لغتونو د جوړولو له پاره کوښښ کړی دئ، د دغه کوښښ ځرکونه ئې نه يوازې په ليکنو او ترجمو کې تر سترګو کېږي، بلکې په عملي ژوند کې ئې هم د دغې هڅې د پرمختګ او پراختيا له پاره کار کړی دئ، څو ځله مې يادېږي، چې د اطلاعاتو او کلتور رياست د رئيس په توګه ئې ډېرو لوحه ليکونکو او هغو کسانو ته چې غوښتل ئې د خپلو شرکتونو او دوکانونو له پاره لوحې جوړې کړي، د دغو جوړو سوو لغتونو د عامېدو او پراخېدو توصيه کړېده، په دې برخه کې ئې: د ونډيتون، جوړښتون او خوړنځای ژوندي مثالونه د ښار په بېلابېلو لوحو کې وينو.

د اروابناد بابې د نوو جوړو سوو لغتونو ژبنۍ خوا څېړل نورو تحقيقاتو ته اړتيا لري، خو د نيولوجيزم د رواني پروسې په څېړنه او تحقيق کې بايد ددوی هڅې او کوښښونه له پامه و نه ايستل سي.

د اروابناد بابې په ليکنو او اثارو کې د نوو لغتونو موندل او را ايستل يوه پراخه موضوع ده، خو ما د دغې کوچنۍ ليکنې له پاره د اروابناد بابې د يوه ضخيم اثر (جغرافيايي سيند) لومړي (۲۰۰) مخونه پرله واړول. په دغو دوو سوو مخونو کې د نوو لغتونو پر بېلابېلو اشتقاقي او ترکيبي ډولونو باندې پېښ سوم، چې د نمونې په ډول ئې دلته څو مثاله وړاندې کوم:

**اشتقاقي لغتونه:**

دا هغه ډله نوي جوړ سوي لغتونه دي، چې ريښه ئې زموږ په ژبه کې له پخوا څخه موجوده ده، خو د مختاړي او وروستاړي په يو ځای کېدو سره ئې په بېله مانا يو نوی لغت رامنځته سوی دئ، لکه:

جوړښتون = مؤسسه

ونډيتون = شرکت

خوړنځی = د خوړلو ځای

آريزه = اصلي

پنځيزه = طبيعي

اوبيزه = آبي

اوه کۍ = هفته

ودانيت = تمدن

منځکی = مرکز

انځۍ = نقشه

ډاګيز = صحرايي او داسې نور ...

**ترکيبي لغتونه:**

ليک پاڼه =

اوبځاله = اسفنج

آسمان ځار =

لټ سمندر = بحرالکاهل

ستورپېژندنه = استرونومي

لمرتله = اصطرلاب

اوبتل = یو ډول کښتۍ
اوبژوانده = هغه موجودات چي په اوبو کي ژوند کوي
اوبلاره = هغه لاري چي اوبه پکښي تېري سوي وي.
اوبیزه برېښنا = برق آبي
اوښ پړانګ = زرافه
بادښود = بادنما
باران ښود = باران معلوموونکې آله
مځکپېژندنه = جیولوجي
تودوښمېچ =
کارځای = کارخانه او داسي نور ...

پورته اشتقاقي او ترکیبي نیولوجیزمونه د اروابناد بابي په (جغرافیایي سیند) کي په پراخه پیمانه کار سوي دي، دا چي د ژبپوهني له اصولو سره څونه سر خوري او یا په کومو ځایونو کي تکر ورسره لري نورو څېړنو ته محتاجه دي. خو دونه باید ووایم چي د جوړو سوو لغتونو له جملې څخه هغه لغتونه چي په جوړولو کي ئې د ژبپوهني ټاکلي اصول مراعت سوي وي، د اولس منځ ته لاره پیدا کوي او په ورځني ژوندانه کي د استعمال سبب کېږي. خو که د ټاکلو اصولو مراعت نه وي پکښې سوی، دغسي نیولوجیزمونه په افرادو پوري منحصر پاتېږي، دغسي حالت نو نه یوازي دا چي ژبي ته به ئې ګټه رسولې وي، بلکي برعکس له ژبي څخه به ئې داسي څه جوړ کړي وي چي خپل ویونکي به ئې مشکل ورسره لري.

په آخر کي باید ووایم چي اروابناد عبدالمجید بابی نه یوازي شاعر او لیکوال وو، بلکي په عام ډول د ژبپوهني او په خاص ډول د دغي پوهي د نیولوجیزم یا نوو لغتونو له وضع سره ئې خاصه مینه درلوده او دغه مینه ئې یوازي په نظري ډول نه پالله، بلکي په عملي او تطبیقي ساحه کي ئې هم پراخه استفاده څني کړېده.

د پښتو ژبي سره دغسي خواخوږي له هره اړخه د ستاینې او قدروني وړ ده، خو زه چي د نیولوجیزم اوسنۍ هښمي ته ګورم، داسي حسوم چي دغه هښمه به د خواخوږۍ پر ځای زموږ د ژبي لوستونکو او علاقه مندانو ته سرخوږۍ پېښ کړي، خدای مو دي له دغسي سرخوږي څخه وساتي.

********

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- مریانو ته ډوډۍ او کالي وررسېږي خو د خبرو کولو حق نه لري ځکه بېرېږي باداران ګومان و نه کړي چي دوي مخالف فکر کوي.
- په امید سره سفر کول منزل ته تر رسېدو ښه خوند لري.
- کار له درو مصیبتونو څخه تا ساتي: دیغت، خباثت او احتیاج.
- لوږي د زحمتکښ سړي کور ته سترګي نیولي وي خو د ورننوتو جرئت نه سي کولای.
- د کارګر سړي خوب خوږ دئ.
- نرۍ د زینې په شان ده؛ یو سړی باندي پورته کېږي بل ځني راکښته کېږي.
- ښه سړی طرفدارانو ته ضرورت نه لري.

*******

پوهندوی لال پاچا ازمون / کابل

# د گلاب شور یې کړلو ترمي ترمي

عجبه شپه وه، خوږه وه، ستورو په وریځو کي پټ پټوني کاوه، د پسرلي تانده ځواني وه، د ورځي په لاس کي گرمه پیمانه وه، د کندهار فضا شاعرانه وه، غر رانه ورک وو، په ما نه شپه سبا کېده او نه ورځ بېگا کېده، نه پوهېږم ولي؟ لا مي د سندرو لار څارله، سندره ورکه وه، د زړه رباب رانه سندریز تارونه غوښتل، د کندهار په خړو کوڅو کي زما د ژوند نغمه سرگردانه گرځېده، په ورکي پسې، په نغمې پسې، په سندریز شور پسې. بیا مي مونده! د ژوند دغه سندره، تر شاتو خوږه له پټ شوره ډکه، په یوه تانده څېره کي دې څېرې د شپې سکون راکاوه او د ورځي سرور، خندانه څېره وه، ښکلې ځواني، له مانه الفاظ ورک دي، څنگه ئې ستاینه وکړم؟ کومه تشبیه ورته وکاروم؟ دلته که د سپین غره د زرکو شور نه ښکاري، دلته که د شمشاد له هسکي څوکي غږ نه راځي، دلته یو بل غر دئ، دلته په دې غره کي یو راز دئ، د دې غره په سینه کي یو غلی شور دئ، د مانا کوه طور دئ. د دې غره زړه له رازونو ډک دئ، خزانې پکښې دي، دا زړه پوښتل غواړي.

تاسي دې غره ته د زړه په سترگو وگورئ، وبه گورئ چي شاعر د دې غره ستاینه د ده په خاموشۍ کي کړې، د ده شور په خاموشۍ کي لټوي، د دې غره نه به څوک لعلونه راباسي، د وخت په سوداگرو به ئې پلوري؛ خو ما په دې غره کي یوه مستي لیدلې، د ځوانۍ یو تاند له شوره ډک سیوری، هغه سیوری چي جل وهلو ته پر سر گرځي، هغه سیوری چي د زړه مراندې راکاږي او هیلې خړوب کړي. د غره دا تاند سیوری د خاموشۍ شور...

پوهېږئ دا څوک وو؟ دا د همدې تاریخي ښار او د حماسو پر ځمکه غوړېدلی زرین باب... یارانو زه درته پټیال یادوم! ما په دې خاموشه غره کي د ژوند د رازونو افسانې لوستي دي، ما پکښې د حُسن کرشمې لېدلې، ما پکښې د مینې او خلوص نړۍ لیدلې.

هغه شپه وه، هغه د ستورو سترگکونه وو، پر دې ځمکه خدای پاک ما ته یو بل ستوری وځلاوه، دا ځمکه پرې ښه ښکارېده، په دې ځمکه نور گرځېده، له دغه نوره د ژوند راز ورېده، د ژوند او مینې یو گډ هنري امتزاج وو، څومره شور وو، څومره زور وو، څه ښایست وو، څومره مینه، څومره حُسن، خدایه! پر دې ځمکه دي همداسي له خزانو، رازونو او ښایستونو ډک یو غر لورولی وو؛ خو ما لا گل

بوی کړی نه وو، بهار تېر شو. خدایه! پر دغه ځمکه د ښایستونو ساه بدرنګ اخلي. خدایه! دا بدرنګي شېبې به کله ښایستونو ته سرکوزي راولي؟ زموږ ژوند خو د بدرنګیو په منګلو کي ښکیل دئ، پر دغه ځمکه به څه مهال ښایست لوروي؟ له ما نه خو یو خاموش له شوره ډک ښایست، د مرګ منګلو واخیست، پر موږ به څه مهال د ژوند شېبې وربېږي؟

د کندهار یو غر راونړېد، د ژوند سندره مړاوې شوه، د زمانې رباب به اوس په خپلو نغمو کي کوم خیالونه ګرځوي؟ د ژوند د مطرب په لاس کي د رباب تارونه ژاړي. نغمې ئې وچي شوې، اوس د ژوند د رباب له تارونو د ښایست جنازه وزي:

خدایه ته چي دا ښایسته له دنیا بیایې
ګنې هورې ستا د حورو څه کمی دئ

کندهار مي اوس هم په زړه وربېږي، د هغې شپې تصویر مي اوس هم د ذهن پر پرده لیک دئ چي ما پکښې د خندان او مینه ناک پټیال تصویر لیدلی وو، هغه مهال ئې لا شونډه هم نوې توره شوې وه، برېتونه ئې نوي نوي غوړېدلي ول، ارمان وو، یو امید وو. دا ځمکه او دا خلک ئې د ښایست د ننداري په تمه ول.

پټیال د میني زړه پرانست، د خلکو په زړونو کي ئې کور جوړ کړی وو، ښکلی بربنبېده، داسي چي د ارغنداو د سندریزي شپې خواږه ئې د ژوند په پېمانه کي وېشل. ارغنداو په سندریز ټال کي ځنګېده، شپه ډېره خوږه، دې شپې د پټیال د ښایست او پټ شور افسانې لوستې، ما دې ښایست ته و نه کتل او په سپین سترګی مې ورته وویل، له تا (نه منمه).

دا وخت پټیال هاغه د طالب د واکمنۍ پټیال نه وو، دا وخت د پټیال د ځوانۍ شور یو نوی باب پرانستی وو، دغه ګلاب د ژوند ټکي راټولول، دا ځل پټیال په لفظونو پسې راووت، لفظونو ئې پر شونډو ساه پوکله، د میني لفظونه ئې پر شونډو ګرځول، ګرد وهلي شناختې ئې لوستې، د ژوند سوداګرو ته ئې دا ښودله چي دلته د میني لفظونه ګران دي، دلته څوک د ژوند لفظونه بې ارزښته نه پلوري: خو چي د مرګ د لفظونو د سوداګرو پرې پام شو نو د ده پر شونډو ئې د ښایست لفظونه ومروړل او د ژوند له لفظونو ئې ساه واخیسته.

دا وخت پټیال سپوږمۍ وه، ستورو ئې پر شاوخوا اتڼ کاوه، خو لا ئې هم خوله له خندا ډکه وه، زه ئې پر خپله خبره پښېمان کړم، خو بیا مي هم د خپل خوی له مخي بخښنه و نه غوښته، ځکه چي که له وړي نه د ګېډې درد نه ځي نو له شاعر نه مشاعرې ته د نه بلنې درد نه ځي او ما ورته وویل که د انارو بلنه نه راکوې؛ نو د انار ګل سیوري ته خو مي در وبوله، پټیال خندل او همدا ئې ویل (درملامت یم). له دې وروسته به د مشاعرې بلنه درکوم، پر ما دې پور پاته شو.

اوس به زما هغه پور څوک ادا کړي؟ انار ګل ته به څوک راسره د ژوند سندره ووایي؟ زه د پټیال له اروا نه بخښنه غواړم، زه څه خبر وم ژوند به دومره ناخواني کوي او د ځمکي له مخ به دا ستوری اخلي. زه څه خبر وم چي غم به د کندهار پر ځمکه د ویر تغر غوړوي، ما خو

امیدونه لرل. ما خو د دې ګل سیوري ته خپل ستړي هډونه دمه کول. زه څه خبر وم چې دا ژوند به دومره ناخوانه وي. سل دي مړه وای خو د سلو سر دي نه!

ځیني کسان د علمي او هنري ځواک له مخي د خلکو په زړو کي ځان ځایوي، خو ځیني کسان په طبیعي بڼه په زړونو کي کور جوړوي، پټیال یو له هغو ځوانانو څخه وو چې په زړونو کي ئې ځانته ځای پیدا کړ.

په زړه کي لکه بت وتراشل شو. اوس ئې یادونه د ژوند زمانې نمانځي. اوس ئې تېر وختونه کارنامې راسپړي. څو چې هنر وي، څو چې دا خاوره وي، څو چې کندهار وي، پټیال به ژوندی وي، پټیال نه مري، پټیال نه مري، پټیال نه مري، خیر که ژوند ناځوانې وکړه او مرګ ورته خپله غېږه پرانسته خو دی په داسې ځای کي خښ دئ چې هلته د رازونو افسانې پټې دي او دا رازونه به د ژوند په آینه کي ښکاري، زما د کندهار هغه شپه هم نه هېرېږي چې د پټیال پر ښېلتانه دردمنه وه. هر خوا ماتم وو، پټیال خندل، کندهار ژړل، پټیال لکه د ګلو باغ سمسور غوړېدلی وو، خو فراق ئې کندهار ژړاوه، کندهار بیا د ویر او ماتم افسانې لوستې، د کندهار پسرلي دا ځل د ژوند له لاسه شنه پېمانه واخیسته، د ژوند ګلاب ئې ترمي ترمي کړ او د باد په مرګونو څپو ئې وسپاره، دلته ژوند بیا د مرګ د سوداګرو په لاس کي ولوید، دا دی بیا کندهار واړه په ژړا سو نا! مرګ مو نه پرېږدي: مرګ ډېر بخیل دئ، موږ چې یو ګل پیدا کړو یو ارمان پیدا کړو، دا ناځوان ئې رانه ډېر ژر واخلي:

د لښکرونو ملک ته وایه
په مړو موړ شوې که لا نور کوې مرګونه
******

د (۲۷) پاڼه برخه:

زه شاهدي ورکوم، چې شهید پټیال د ځوانې رهبرۍ پورته یاده شوې ځانګړنه پېژندله او خپله شخصیتي وده ئې ورسره سمه عیاره کړې وه. هغه د کندهار او بیا ټول افغانستان له پاره د ستونزو پر ریښو. حللارو او متشکل و منظم پرمختګ باور درلوده.

شهید پټیال ولاړ، روح ئې په جنت سه! خو څه مو ترې زده کړل؟ افغانستان ځواني رهبرۍ ته اړ دئ. د خپلې سیمې او بیا وروسته د ټول هېواد په کچ ښایي له وراسته او پر ټوپک و توري پانګې متکي نسل څخه رهبري هغه نسل ته ولېږدي، چې په کرایي کور کي ژوند کوي، خو د خپلو هېوادوالو د انساني ژوند د شرایطو د ښه والي له پاره د څه کولو اراده ئې د امتیاز نخښه ده.

پټیال یوه الګو وګڼئ او نور نو یوازې د رواني سیاسي پروسې له پاره د پرزو ونډه مه منئ، په خپله د ټولنې د پرمختګ انجن شئ او لا تر دې لوړ د ډریورۍ څوکۍ هم ونیسئ.

پټیال هغه ویشتلی لمر وګڼئ، چې یو کهکشان ستوري ئې د ویاړلي کندهار پر لمن شیندلي دي، دغه زلمي ستوري هر یو د رهبر کېدلو وړتیا لري، د افغانستان د سیاست او رهبرۍ دغه لرغوني مینه د ځوانانو په مټ ورغوئ، ډاډ ولرئ، چې ټول افغانستان له همدې ځایه رغولای او ژغورلای شئ. ما دغه ډاډ د شهید پټیال په معصومه څېره کي لیدلی وو. اروا یې ښاد، یاد یې ژوندی.

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاری

شهید پتیال

## غزل

کـــور د مغـــان، کیـــف د مـــست جـــام
وړي مـــي ایمـــان، وینې کـــړئ امـــام
شـــرنګ د ځنځیـــر، شـــور د کـــړې
غـــوا ړم زنـــدان، دا مـــي پیغـــام
ســـر د غـــرور، خیـــال د مـــستۍ
ځـــان کـــي توپـــان، وړمـــه مـــدام
رنـــګ د تـــصویر، وږم د عـــشق
نـــاز د جانـــان، خونـــد د کـــلام
زوږ د جنـــــت، تـــــاو د دوږخ
ډار لـــه آســـمان، نـــه دئ مـــرام
خوښـــه د یـــار، څـــرک د نګـــار
نـــور د یـــزدان، لـــوړ دئ مقـــام
وار د پتیـــال، ســـر د ښـــمن
تیـــر او کمـــان، مـــلا د امـــام

۱۱ حوت، ۱۳۹۲ش

شهید پتیال

## غزل

لا تر زړګي در رسېدلی نه یم، لار ده پاته
ستا تش نظر ته درغلی نه یم، لار ده پاته

پر ېږدئ له جوره د زمان چي نور زخمونه واخلم
د ژوند ګره کي ایشېدلی نه یم، لار ده پاته

زما د سترګک په شکل پټ د یار په سترګو یم
خو له وچ ضده ئې وهلی نه یم لار ده پاته

ستا د مخ لمر ته هغه سیند یم چي موجونه وهي
ستا په غروب کي بهېدلی نه یم لار ده پاته

پتیاله ورک غوندي تصویر یم آئینه کي پروت یم
مودې سوې تېري یار بللی نه یم لار ده پاته

شهید پتیال:

## غزل

زړه له ځایه دئ وتلی زما ګمان پر تا دئ یاره
خیال مي دئ په اور داغلی زما ګمان پر تا دئ یاره
زما له بخته نرمي نه وه ستا د شونډو په سیبنه کي
هسي یم پر ښویېدلی زما ګمان پر تا دئ یاره
نه څه ست وو، نه بلنه نه مي خوښه وه چي راسي
دا پرهر چي نن راغلی زما ګمان پر تا دئ یاره
ما خو سر نذرانه کړی ستا محفل ته د درتللو
خو هیڅا نه یم بللی زما ګمان پر تا دئ یاره
کوم حالت چي ستا پېرزو وو، هغه راغی سو تر سره
اوس پتیال نه دئ ښاغلی زما ګمان پر تا دئ یاره

شهید پتیال

## غزل

رابهېږي نن له ښاره د خمارو اوښکو لپي
وړو د خپل ژوند تر مزاره د خمارو اوښکو لپي

زموږ خوښي د زړه له درده، زموږ ښکلا دردو کي نغښتې
موږ کړلي تر سینګاره د خمارو اوښکو لپي
پام چي رنګ ئې بدل نه سي غبار پل پسي اخیستی
دلته رسم پر هینداره د خمارو اوښکو لپي
تر مانبامه اخلو زخم په سرو وینو کي غوټه یو
تویوو بیا تر سهاره د خمارو اوښکو لپي

د صنم د ګرېوان لار کي د سرو اوښکو مزل تم سو
خو پتیال توي کړې بې واره د خمارو اوښکو لپي

احمد فاني

## غزل

دلته موږ کار کوو بې کاره باسو
مړي په دې خاطر له ښاره باسو
که چا دوه چنده پکښي ځان وباله
موږ يې له لاس څخه هینداره باسو
چي پکښي دود کوي او څوک ژړوي
هغه نیم خامه له انګاره باسو
کاني پر سر د رېګو هم نه پرېږدو
مظلوم د ظلم له حصاره باسو
احمدفاني د مرګ پر لار څو څکه
دغه تکرار ژوند له تکراره باسو

عبدالله ستوري

## غزل

چي نه جادو نه معجزه نه کرامت دئ ګله
ستا د غزالو سترګو څه ډول خاصیت دئ ګله
زموږ د زړو کوتري نیسي د ښو په منګول
ستا د نظر د شاهین دا ظلم عادت دئ ګله
څه بدعتونه پکښي خامخا موږ هم کړي دي
خو ستا د ښکلي مینې دین نور سلامت دئ ګله
ستا د خوږې مینې جنت ته اروا ستړې در وړم
ما قبول کړی ستا د مینې شهادت دئ ګله
زما د اوښکو وزر ماتي مارغان وتپېدل
ستوري لا کړی ستا ښو ته مقاومت دئ ګله

اسیر احمد یاد

## غزل

هر وخت په اوښکو مینځمه د شپې ځلانده ستوري
را اوروه را اوروه کعبې ځلانده ستوري
په تش لاس نه درځمه دا پېغور دئ پښتنو ته
درځمه خامخا در ورم ورې ځلانده ستوري
همداسي خو دي نه پرېږدم ښکلا دي ډېرومه
راوړي مي په جېب کي ځو دانې ځلانده ستوري
پر ما لوړ توره شپه وه او دلې هم توره شپه ده
یو ځو دانې خو راوړه هدېرې ځلانده ستوري
هغسي مي هم تنده د چا زړه کي ماته نه کړه
را دې خوا که ساقي نن ځو پیالې ځلانده ستوري
کافر نه یمه نه چي بدګومانه سې زما یاده
ساتلي مي لمن کي له مودې ځلانده ستوري

جهیش وصال

## غزل

د زړه د ارمانونو جنازه پر اوږو وړم
په اوښکو کي د سترې ژوند کیسه پر اوږو وړم
دا ستا د فراق درد چي مي ملګرى سي جانانه
سلګو کې تر سهاره هره شپه پر اوږو وړم
دا ته چي زما خپل سوې رڼاګانې مي سوې خپلې
که لمر نه یم د لمر غوندي آینه پر اوږو وړم
د یار د پېغلو شونډو د شرابو په نشه کي
ساغر پر اوږو ورمه میکده پر اوږو وړم
جهیشه چي وصال دي د مړو سترګو کله وکړم
د مستي نڅا غېږه کي نغمه پر اوږو وړم

محمدعمر ساغر

## غزل

درد مي کړي د خپل وجود ایرې په دروازه کي
سوالګره غوندي ناسته وې د شپې په دروازه کي
یو ځوک وو چي پر مخ به یې سپېرې خاوري راباد کړې
یو چا بیا راته اینبي وې ډېوې په دروازه کي
یو صحرا وحشت به مي له ذکره فکر ووت
چي به دي کړې شونډې تکي سرې په دروازه کي
ملګرې نور احوال به د دېوال تناکي درکړي
ته نه وې ما دي وکړلې سجدې په دروازه کي
خپس د تنایي مي په رګ رګ باندي خپره ده
قربان دي سم حلال مي که تر دې په دروازه کي
ساقي دا مي وصیت دئ په شرابو غسل راکه
او ښخ مي که جسد د میکدې په دروازه کي

حامد دقیق

## غزل

د هغې د زني خال او شاعري
ځومره خوند کوي جمال او شاعري
د پرې سوي زړه پرهر ټکوروي
د ارغند د رود شمال او شاعري
د اولاد په څېر زما غمشریکي کړې
ستا د لاس هغه رومال او شاعري
له تورو خاورو جوړ کړي سره لعلونه
دا هنر لري کمال او شاعري
تا په ژوند کي بدلون ونه کړ دقیقه
هغه ته هغه دېوال او شاعري

نقیب قریشی

غزل

له مانه زړه مه وړه له ما سره خبري وکه
نور د دردونو له پاچا سره خبري وکه
ستا د هغې ورځې د هغې خندا هغه تاثیر
راته شله دئ وای ګیتا سره خبري وکه
د ګندارا د شاپېرو د سُرخیو په باب
له پانې پانې اوستا سره خبري وکه
بیا به مې مرګ د سوي لمر د تماشې سترګه کړي
بیا به دا نه وایې چې چا سره خبري وکه
حروف د ساز له شوره ووتل سر کښېنه سوله
کنداري زړه مې وای پکتیا سره خبري وکه
چې بیا به ژوند څنګه وي بیا به زمانه څنګه وي
نقیبه نن شپه له رویا سره خبري وکه

ثریا حمیدي افغان

## غزل

زما د هیلو قتلګاوو ته ولاړ یې
یاره څه تورو بلاوو ته ولاړ یې
هسې مه دربېږه نه راځي پر شونډو
خندا نه لرم ژړاوو ته ولاړ یې
اوس دي زخم د زړګي په درمل نه سي
زما د سرو شونډو دواوو ته ولاړ یې
د حالاتو مجبورو مې بنګړي ګونګ کړه
زه پوهېږم ته یې شرنګاوو ته ولاړ یې
ستا بېلتون زه راویشتلې یم د مخکې
ته مې اوس هم و اداوو ته ولاړ یې

فدامحمد اقبال

## غزل

زړه مې په لاس کي ګرځوم رانه سینه ورکه ده
خوبونه مانه تښتېدلي دي که شپه ورکه ده
له ډېره وخته مې د زړه څنځیر شرنګې نه کوي
له ډېره وخته د زړګي مې دروازه ورکه ده
زه مې هم کله کله بخت په آینه کي ګورم
دېوال ته مخ مې وي له ما مې آینه ورکه ده
کلونه کېږي چې هغه مې لا لیدلې نه ده
زه له هغې ورک یم که مانه هم هغه ورکه ده
ستا پېغلتوب د لېونتوب تر حد هم واړولم
څنګه لمونځ وکړي له اقبال څني کعبه ورکه ده

محبوب مشتاق

## غزل

کومه ورځ دي زه بې خوصلې نه کړم
درک دي یوه ورځ هم زمانې نه کړم
مرګه بس دئ، نور دي څکلومه نه
نور نو درته نوري بهانې نه کړم
وایه بېوسيې کله دي مړ نه کړم
وایه کومه ورځ دي بې څېرې نه کړم
ژونده د نجات غېږ کي دي پټ نه کړم
تېر دي د مرګونو تر څپې نه کړم
هو ولا په ژوند کي دي فالتو یمه
ځان سره دي نوري نو کیسې نه کړم
پرې ئې ږده مشتاق مې قسم نه مني
نور ور ته قسم په سېپارې نه کړم



سعید لودین/کاناډا

# ستایم دې خو پالم دې نه

بورا به خدای په ګلو موړ کړي
باغوانه ستا نیمګړې نیت مې ژړوینه

شهید ښایسته یار ته چې مې د شهید بابې تر شهادت وروسته د اطلاعاتو کلتور ریاست وړاندیز وسو او خبر ئې تر کاناډا پورې راورسېدی نو مې ټلیفون ور وکړ. د تل په څېر مې پر پنځم شپېږم زنګ ور وهلو پیدا کړ. تر اوږده خواږه روغبړ وروسته مې و ریاست ته ئې د ټاکلو مبارکي ورکړه خو سمدستي مې خپلي اندېښنې هم ورسره شریکي کړې.

د شهید بابې بېګناه مرګ، نامرده قاتل ئې او ناځوانه چارواکي مې ور یاد کړل. په مهربانه او خندانه آواز ئې راته وویل:

"چې موړ ئې و نه کړو، نو بې څوک وکړي؟"

جرئت، قرباني او له دې ښار سره میني ئې په ما کې نور سوالونه وچ کړل. په ډاډه آواز مې ورته وویل: "تل دې کامیابي مل سه،

دربابندي ویاړم او دربندي خوشحاله یم خو زړه به مې تل دربندي کښانده وي".

په خندا ئې راته وویل: "د خارج د مصروفه ژوند سټړیاوي دي بس نه دي چې په موږ به دي هم زړه کښانده وي، ان شاءالله شی لا نسته. څه وخت راځې؟ درپسي دیغ سوي یو".

مضمون ئې په خورا مهارت واړاوه او زما اندېښنې ئې هم اندېښنې پرېښوولې.

پټیال له ریاست څخه ولایت ته بوتلل سو او دا هغه ځای وو چې د ده پاکه ارواء، نرم زړه او ژوندی وجدان ئې نه وو ورته جوړ. زما اندېښنو هم د بلاوو په څېر هر وخت بېرولم.

خو یوه ورځ ځانبت مهال زنګ راغلی. ول خبر یې؟ وای پټیال ئې ویشتلی دئ!

زړه مې تر تلو ولوېد، لاسونه مې په رېږدېدو سول، ټلیفون مې بند کړ او دستي مې روهیال او مومن ته زنګونه ووهل. هغوی راسره په چیغو او ژړا سول او د ښایسته پټیال جنازه مې له دې ځایه په اوښکو ورسره بدرګه کړه. خو زما له خپلو اندېښنو کر که وسوه ځکه د خواره یار د شهادت او د نامرده قاتل وهمونه ئې رښتیا ختلي ول او د ناځوانه چارواکو د ناځوانۍ کیسه مې راتلونکې بللې وه ځکه دا کیسه تکراري وه.

د شهید بابي، شهید انجنیر آشنا، شهید پرویز، شهید او شهید یتیمان په دوهمه هفته بیا هېر سوي ول. نه ئې چا پر یتیمانو پوښتنه کړې وه او نه ئې د هغوی لاس نیوی کړی وو. نن چې موږ د شهید پټیال په یاد سره راغونډ سوي یو آیا خبر یو چې زموږ د دې ښایسته شهید پر ښایستو کوچنیو یتیمانو څه تېر ېږي؟

په اقتصادي حالت ئې خبر یو؟ د کور، تعلیم او آیندې غم مو ئې خوړلی دئ؟

جاده مو د شهید پټیال په نامه کړه خو خدای مه کړه په همدې جاده کي د شهید نازولي د ژوند ستونزو پر سر اخیستي سرګردانه ګدایي و نه کړي. موږ به صرف هغه څه نه کوو چې عالم په خوشحاله کېږي بلکي ها به هم کوو چې د شهید روح او نازولي ئې په خوشحاله کېږي، نو به بیا یو بل وطن دوسته د خپل سر و قربانۍ ته آماده کېږي او د خلکو خدمت ته به ملا تړي کنې د شهید پټیال په څېر بې آسرې خلک به پر کور کښېني او اداري به مو له پاک نیتو خالي سي.

د شهید پټیال د فاتحې په ورځ چي حکومتي چارواکو د شهید له یتیمانو سره کومي وعدې وکړې د عملي کولو غوښتنه ئې بیا تکراروم . په دې کار سره به مو هم د ښایسته پټیال د قربانۍ قدرداني کړې وي هم به مو ئې د یتیمانو پر سر لاس ور تېر کړی وي.

په پای کي د اطلاعاتو او کلتور له رئیس ښاغلي مینه پال صاحب څخه د زړه له کومي مننه کوم چي پر شهید پټیال ئې دا کنفرانس جوړ کړ . د همده او نورو په زړه خوږمنو یارانو تپ و تلاښ ئې دئ چي پټیال ئې نه دئ راځخه هېر کړی کنې ښایسته پټیال به هم د نورو پاکو شهیدانو په څېر اوس هېر وای.

زما یو شعر (موږ ته ئې شا کړه) د خوانیمرګ پټیال خورا خوښ سوی وو او زما د

کتاب په سریزه کې ئې یادونه هم کړې وه. د ناځواني، دا لنډ داستان ستاسو سره هم شریکوم:

په شرنګا کې د سرو تورو
په میدان کې بې له زغرو

اطاعت مو د حاکم وو
چې تر مرګه به ور ځغلو

نه به درد د چا مانع وي
نه به بېره له وهلو

پر سرونو مو اور بل کړ
د منزل پر لوري تللو

چې قطره قطره د وینو
هر قدم قدم روڼا کړل

چې خوانۍ مو د خیالونو
په قبرو باندې سودا کړل
قربانۍ چې د سرونو
رباتونه کربلا کړل
چې پر عزمو زخمي موټو
د غلیم لښکر خنثی کړل

چې شیشني مو د آسونو
د کلا برجونه وا کړل

او تاجونه د ملکونو
مو سرونو ته روا کړل

د لښکر سپه سالار مو
په میدان کې قهقها کړه
زمونږ د وینو و میدان تې
تر ابده خپله شا کړه

د شهیدانو روح دې ښاد، قربانۍ دې ئې ځلانده او یاد دې تل ژوندی وي.

*******

د (۵۲) مخ پاته برخه:

د نورو ښېګڼو په څنګ کې د خدای بخښلي بابې یوه بله ښېګڼه چې نه یوازې د هېرېدو نه ده بل لا مونږ باید له هغه څخه زده کړه وکوو هغه د ځینو یا زیاترو مسئلو په اړه له مشرانو، نظرخاوندانو او پوهو ځوانانو سره سلا او مشوره وه. د ده وړتیا او مهارت په دې کې وو چې د مشورې له پاره ئې د راز راز مفکورو او نظرونو خاوندان په یوه کوټه کې پر یوه مېز باندې راټولول او خورا په ورین تندي ئې د ګردو نظرونه اورېدل او موضوع به د ټولو یا زیاترو په همنظرۍ سره پایلې ته ورسېده. د ده د مشورې غوښتنې د غونډو شاهدان خورا ډېر کسان دي.

په پای کې زه هیله لرم، راځئ! چې د ژوندانه په اصلي معنا پوه سو او یو له بل سره مو ژوند په مینې، پېرزوینې، لاس نیوي او خواخوږي سره وکړو تر څو له وینې، کرکې او غچ څخه پاک او هوسا ژوند ولرو. یو پښتون شاعر وایي:

چا تحفه راوړه چـــاړه و شــــیخ فرید ته
شیخ چـــــاړه بیرته ور رد کړله مـــرید ته
ول چاړه مه راوړه ځکه چې پرېکـــړون کا
که راوړې ستني راوړه چې پیوســـتون کا
بویه ستني سو چې پرې زړونه پیوند کړو
چاړه نه سو چې د کار قطع و ګـــزند کړو
والله المستعان



استاد عبدالباري جهاني/امریکا

# سیداحمد بریلوي او هندوستاني مجاهدین

پنځمه او وروستۍ برخ

## طریقه محمدیه:

سره له هغه چې سید احمد بریلوي په دریو مهمو طریقو کې له خلکو څخه بیعت تر لاسه کاوه خو یوه بله طریقه ئې چې په هند کې یې د شاه ولي الله په زمانه کې اساس ایښودل سوی وو، او محمدیه بلل کېدله، هم رامنځته کړه. محمدیه، چې د اسلام د پیغمبر لاره بلل کېدلای سي، یو داسي تصوفي تحریک وو چې پیروانو ئې ادعا کوله چې د اسلام هغه پاک او صاف حالت بیرته را ژوندی کوي چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم او د هغه د اولاد او اصحابو په وخت کې موجود وو. البته هغه طریقه محمدیه چې سیداحمد بریلوي ئې تبلیغ کاوه او خلک ئې ورته رابلل، په اصل کې کومه تصوفي طریقه نه ده. نه د تصوف په باره کې په لیکل سویو کتابونو کې د تصوف په سلسلو کې د دغې طریقې نوم یاد سوی دئ او نه پخپله سیداحمد بریلوي په صراط مستقیم کې د دې طریقې نوم یاد کړی دئ. دغه تنظیم په اتلسمه پېړۍ کې د ډهلي خواجه نصیرالدین، چې په شعر کې ئې نوم عندلیب وو، منځته راوړ او د هغه زوی خواجه میر درد، چې د پلار په څیر د اردو او فارسي ژبې صوفي شاعر وو، هغې ته ښه وده ورکړه. په داسي حال کې چې محمد بن عبدالوهاب او د هغه پیروانو په خپلو تبلیغاتو او د اصلاحاتو په فعالیتونو او عملیاتو کې چنداني د طریقې او تصوف نوم نه دئ اخیستی. سید احمد بریلوي د محمدیه طریقې پر اساس ویل چې د بشپړي مسلمانۍ لپاره طریقت او شریعت دواړه لازم دي. سید احمد د طریقه محمدیه په تشریح کولو کې پر دې خبري ټینګار کاوه

چي د انسان هر عمل باید د خدای (ج) د رضا له پاره وي. که یو مسلمان واده کوي نو باید په زړه کي ئې دا خبره وي چي غواړي په دې توګه ځان له فساد څخه وساتي. که کاروبار کوي نو باید په زړه کي ئې دا خبره وي چي غواړي د خپل کاله له پاره حلاله نفقه پیدا کړي. که خوراک کوي نو باید چي نیت ئې دا وي چي غواړي د خدای (ج) د عبادت له پاره انرژي ولري او د لمانځه د کولو، روژې نیولو، حج د فریضې د ادا کولو او که لازمه وي د جهاد له پاره قوت ولري. Sayyid Ahmad p ٩٦

سید احمد بریلوي ویل چي مسلمان باید له ټولو انسانانو سره خواخوږي او مهرباني وښیي. سید احمد بریلوي وایي پیغمبر (ص) ویلي دي چي خدای تعالی پر هغو خلکو مهربان دئ چي پر انسانانو باندي مهربان وي پر مځکه باندي پر اوسېدونکو مخلوقاتو باندي مهربان اوسئ څو هغه چي په اسمان کي دئ پر تاسي مهربان سي. سید احمد وایي د دې حدیث اصلي مفکوره دا ده چي د نورو خلکو د ارزوګانو او ارمانونو په پوره کولو کي مرسته وکړئ او د مسلمان او کافر دواړو د هدایت دعا وکړئ. کوښښ وکړئ چي د ټولو خلکو سره د مرستي په لاره کي خپل ټول وس تمام کړئ. خلکو ته ډوډۍ ورکړئ، جامې ورکړئ او حتی که مو د یوې خرما ورکولو مرسته په وس رسېږي خپل وس مه سپموئ. سید احمد بریلوي وایي د هر چا سره د هغه د ضرورتونو او اهلیت پر اساس سلوک وکړئ او دغه راز د مغرورو خلکو سره، چي نورو ته په کښته سترګه ګوري، کار مه لرئ. خو دا خبره مه هېروئ چي د هغو د هدایت له پاره باید دعا وکړئ او دې ته مه ګورئ چي هغه ښه سړی دئ او کهګناه کار دئ. ibid pp ١٣٠-١٣١

سید احمد بریلوي د هند په څېر یوه ټولنه کي ژوند کاوه چي ډېر لوی اکثریت اوسېدونکي ئې هندوان ول: هغه ته څرګنده وه چي که مسلمانان په هند کي نېکمرغه ژوند غواړي نو باید چي له هندوانو سره په سوله کي ژوند وکړي. هغه چي هر کله د عقایدو او دین خبري کوي نو د هندوانو عقیدې او دین ته درناوی کوي او یوازي د خپلو مسلمانانو په عقایدو او رسومو کي د هندو عقایدو نفوذ غندي. محمد بن عبدالوهاب له دغه راز ستونزي سره مخامخ نه وو او دې ته اړ نه وو چي د عیسویانو، هندوانو او نورو مذهبونو د پیروانو مراعات وکړي. د صحیح مسلم یو حدیث را نقلوي او وایي چي ابو حیاج وایي چي ما ته علي رضي الله عنه وویل چي زه تا ته هغه ماموریت در سپارم چي ما ته پیغمبر صلی الله علیه وسلم را سپارلی دئ او هغه دا چي هیڅ مجسمه بې ورانولو مه پرېږده او ټول هغه قبرونه چي جګ جوړ سوي دي له خاورو سره برابر کړه Kitabal Tawhid p ١٥٢.

په داسي حال کي چي دا دواړه کسان د اصلاحاتو راوستلو او د اسلام له دین څخه د خرافاتو د لیري کولو او په اسلام کي د نورو مذهبونو د نفوذ پر ضد مبارزه کي تقریباً یو شان نظر او ماموریت لري، خو اجتماعي شرایطو او ضرورتونو د دوی دواړو په نظر او عمل کي څرګند توپیر را وستی وو.

د هندوانو او غیر مسلمانانو په برخه کي، د سید احمد بریلوي دغه پراخ نظر د هغه د لوی مرشد شاه ولي الله له نظر سره څرګند توپیر لري. که څه هم چي شاه ولي الله هم طریقه محمدیه تبلیغوله او د دغي طریقي له موسسینو څخه ګڼل کېږي خو هغه هندوانو او نورو غیرمسلمانانو ته په ډېره سپکه سترګه کتل او توصیه ئې کوله چي هغوی باید په زور مسلمانان کړل سي او عبادت کولو او درمسالونو ته پرې نه ښودل سي او پر دې سربېره باید د هغوی له پاره په ټولو اجتماعي او سیاسي چارو کي تبعیضي قوانین وضع سي او له هغوی سره په هیڅ توګه عدالت و نه سي Shah Wali-Allah p ۲۸٦.

شاه ولي الله وروسته وایي چي د هندوانو د مسلمان کولو پروګرام باید یوازي د هغوی مشرانو ته متوجه وي. د کافرانو له کښتني طبقې سره دي غرض نه کېږي او هغوی دي په کروندو کي خپلو کارونو ته پرېښوول سي چي خپله جزیه ورکړي. دوی دي د بار وړونکو حیوانانو او د کرني د چارو د څارویو په څېر په زحمت او نا امیدی کي وساتل سي Ibid p ۲۸٦.

شاه ولي الله حتی په دې هم بسیا نه دئ او د هغو کسانو په مسلماني باور نه لري چي د توري په زور مسلمانان سوي دي. دی وائي دغه کسان په حقیقت کي منافقان دي او د قیامت په ورځ به د نورو کفارو سره یو ځای د دوږخ په ژوره شیله کي یو ځای سوځي. دی وایي د توري زور د مسلمانو سویو کافرانو له زړونو څخه شک او ګومان نه دئ ایستلی او هر وخت د هغوی د بیرته کافر کېدلو احتمال سته. دی وایي چي امامان باید دغو کسانو ته تبلیغ وکړي او په عقلي دلایلو د اسلام حقانیت ورته ثابت کړي. Ibid

سید احمد بریلوي، هم د شاه ولي الله او شاه عبدالعزیز په څېر ویل چي باید په شریعت کي مستقیماً د پیغمبر صلی الله علیه وسلم خپله لاره تعقیب سي او له ټولو هغو خرافاتو څخه ځانونه وژغورل سي چي تش په نامه ګمراهو صوفیانو منځته راوړي او خلک ئې په عادت کړي دي. البته سید احمد بریلوي په خپلو تبلیغاتو او عمل کي ډېره نرمه لاره اخیستې وه او دغه علت دئ چي ډېرو هندوانو د هغه پر لاس باندي بیعت وکړ او ډېر شیعه ګان د هغه د تبلیغ او سلوک له امله سنیان او د ده مریدان سول. خو طریقه محمدیه په عین حال کي پر اجتهاد باندي ټینګار کوي او وایي چي د مسلمان له پاره تقلید ضروري نه دئ او باید چي د قرآن شریف او احادیثو د تفسیر او تعبیر صلاحیت ورکړه سي. شاه ولی الله پخپله خپل ځان مجتهد بولي او وایي چي تر بل هر چا د ده له پاره د قرآن شریف د ترجمه کولو او تعبیرولو حق حاصل دئ. Ibid p ۲۳۲

شاه ولي الله وایي د علماوو اکثریت په دې عقیده دئ چي تقلید ضروري دئ. دی له هغوی سره دا خبره مني خو وایي چي هیڅ امام له خطا خالي نه دئ او هیڅ یوه ته وحي نه دي راغلي. کله چي موږ د یوه امام پیروي کوو نو مطلب مو دا دئ چي هغه په قرآن او احادیثو کي ژوره پوهه لري. که موږ د هغوی په دغه پوهه باور نه درلودلای نو هیڅ وخت به مو د

هغوی پیروي نه کولای A History of Muslim Philosophy p ۱۵۷۵ .

سید احمد بریلوي توصیه کوي چې د حقیقي نجات له پاره په مرشد پسې ګرځېدل ضروري دي، ځکه چې له مرشد او رهبر څخه پرته د سمې لارې پیدا کول ډېر ګران کار دئ. باید چې داسې مرشد ولټول سي چې پخپله د قرآن او احادیثو په احکامو عمل کوي. البته داسې نه وي چې سړي ته مرشد هر څه وایي هغه به مني او د مرشد حکم به د خدای او رسول حکم او فیصله بولي. صراط مستقیم ص ۱۰۰.

محمد بن عبدالوهاب او د هغه پیروان هیڅکله د مرشد د پیدا کولو او د هغه د اطاعت کولو او نه کولو توصیه نه کوي. بلکې د هغوی له پاره د پیرۍ او مریدۍ سوال له سره طرح نه دئ. محمد بن عبدالوهاب په خپلو ټولو لیکنو کې د علم او پوهې د لاسته راوړلو او د اسلام په روح د ځان د پوهولو توصیه کوي. هغه په خپلو ټولو لیکنو کې وایي چې علم باید یوازې د علماوو او څوتنو پوهانو په انحصار کې نه وي بلکې دا د ټولو نارینه او ښځینه مسلمانانو وظیفه ده چې د مذهب په اساساتو او تفصیلاتو ځانونه خبر کړي Wahabi Islam p ۱۹۴.

## دارالحرب او دارالاسلام:

د دیارلسمې مېلادي پېړۍ د لومړۍ لسیزې څخه د اتلسمې پېړۍ تر لومړۍ لسیزې پورې د هندوستان پراخه خاوره، د پنځو پېړیو له پاره، د مسلمانو پاچاهانو تر لاس لاندې وه. مسلمانانو، چې د هند د نیمې وچې ایله په سلو کې پنځه نفوس ئې تشکیلاوه، په ډهلي، کشمیر، جونپور، بنګال او دکن کې داسې مستقل او غښتلي حکومتونه درلودل چې هندوانو تقریباً هیڅ صلاحیت او واک نه پکښې درلود. له خزانو څخه نیولې، تر حاصلاتو، پوځي قواوو او هر څه پورې ټول واک د مسلمانو پاچاهانو په لاس کې وو. په ټولو دربارونو کې علمي، تاریخي او پوځي څېړنې، شعر او شاعري، ادبیات او د حکومتي مکتوبونو ژبه فارسي وه. هندو راجاګان، چې د پېړیو راهیسې یې پر دې خاوره باندې پاچهي کړې وه، د مسلمانو پاچاهانو او جنرالانو په خدمت کې ودرېدل. په سل هاوو زره هندوان، څوک د توري په زور او څوک د اسلامي علماوو او لویو صوفیانو او شاعرانو د تبلیغ په وجه مسلمانان سوي وه؛ او چې د هند په خاوره کې څه نعمتونه ول هغه د مسلمانانو په برخه ول. د اووه لسمې پېړۍ له نیمایي کلونو څخه د هند په بېلو بېلو سیمو کې د مسلمانانو د قدرت د مرکزونو انحطاط پیل سو او په ۱۷۰۷ مېلادي کې، د مغولو د وروستني لوی واکمن محي الدین اورنګزیب د وفات سره سم، د شهزاده ګانو تر منځ د پرله پسې جنګونو په اثر په ډهلي کې د مسلمانانو د قدرت د بشپړ زوال نخښې ښکاره سوې. اسلامي علماء او روحانیون مخکې له هغه چې په هند کې د اسلام او اسلامي افکارو او عقایدو انحطاط ته متوجه سي، د هغې نیمې وچې په بېلو بېلو سیمو کې د مسلمانانو د قدرت انحطاط او زوال راوینې کړل. د مسلمانانو علماء او

مشران هغه وخت ستونزي ته متوجه سول چي انګريزانو د هند تقريباً ټول مهم ښارونه، تجارتي مرکزونه او نظامي ځايونه تر کنټرول لاندي کړي ول او د ډهلي په ښار کي ئې هم نفوذ کړی وو. انګريزانو د تقريباً يوې نيمي پيړۍ راهيسي په هند کي هر واکمن قدرت له بل سره جنګولی او په دې توګه ئې ټول داسي کمزوري کړي ول چي هيڅ يوه ئې نه د خارجي يرغلګر په مقابل کي د دفاع او نه پر دښمن باندي د يرغل توان درلود. د مسلمانانو مذهبي مشرانو هند دارالحرب وباله او د مسلمانانو ځخه ئې وغوښتل چي د انګريزانو د شرلو له پاره لاسونه سر ورکړي. دوی دې ته متوجه نه ول چي په هند کي د مسلمانانو قدرت د تل له پاره له منځه تللی او نور ئې د بيرته راګرځولو امکانات نسته.

شاه عبدالعزيز وليکل چي هر کله کفار يو اسلامي هيواد اشغال کړي او د هغه هيواد او ګاونډيو هيوادونو د مسلمانانو له پاره دا ممکنه نه وي چي کفار پسي واخلي او يا د هغوی د شړلو اميد ولري او د کفارو قدرت دونه زيات سي چي دوی اسلامي قوانين او الهي احکام د خپلي خوښي سره سم لغو کوي او هيڅوک دونه زور نه لري چي د کفارو له اجازې پرته د هيواد د عايداتو کنټرول په خپل لاس کي واخلي او د هيواد مسلمان اوسېدونکي د پخوا په څېر په سوله او ارامي کي ژوند نه سي کولای نو دغه راز يو هيواد په سياسي لحاظ د دښمن هيواد دئ او دارالحرب بلل کيدلای سي Indian Musalmans p ۱۲۴.

د شاه عبدالعزيز وراره او د سيد احمد بريلوي نژدې پيرو او مريد مولوي عبدالحي په دغه اړه حکم وکړ چي له کلکتې ځخه نيولې تر ډهلي او شمال لوېديځي صوبې پوري د مسيحيانو امپراطوري ده او دا ټول دارالحرب دئ. په ټوله سيمه کي بت پرستي او شرک رواج لري او اسلامي مقدس قانون ته هيڅوک مراجعه نه کوي. کله چي په يوه هيواد کي دغه راز حالات منځته راسي نو هغه دارالحرب بلل کېږي. موږ ټولو حالاتو او شرايطو ته په تفصيل اشاره نه سو کولای؛ خو دونه بايد ووايو چي د اسلام د دين ټول علماء پر دې خبري سره موافق دي چي کلکته او د هغې شاوخوا سيمي د دښمن خاوره او دارالحرب دی ibid p ۱۳۵

دمولوي عبدالحي د ادعا پر خلاف د اسلام ټول علماء له هغه سره په يوه عقيده نه ول. د مکې معظمې حنفي مذهبه مفتي جمال ابن عبدالله شيخ عمر الحنفي او شافعي مذهبه مفتي احمد بن زيني دهلان حکم کوي چي هر کله يو هيواد د کفارو لاس ته ولوېدی نو تر هغه وخته پوري چي د اسلام د ټولو او يا اکثر فرايضو عملي کول منع سوي نه وي هغه هيواد دارالحرب نه سي بلل کيدلای Ibid pp ۲۰۸-۲۰۷.

دغه راز د لکنهو، رام پور او ډهلي اوو تنو مذهبي عالمانو د همدغه پورتني سوال په جواب کي وويل چي عيسويان په هند کي د مسلمانانو ساتنه کوي او په هغه هيواد کي چي د مسلمانانو امن خوندي وي هلته جهاد نسته. د دې تر څنګ، دا هم ضروري ده چي د جنګ او جهاد په نتيجه کي بايد د هند د

مسلمانانو د بري احتمال موجود وي او د مسلمانانو اعتبار او عظمت ته تاوان و نه رسېږي. که دغه راز احتمال موجود نه وي نو بیا جهاد غیر قانوني دئ Ibid p ۲۰۹ .

مولوي عبدالحی او شاه عبدالعزیز د مسلمانانو ستونزو ته په داسي وخت کي متوجه سول چي او به له ورخه تېري وې او نور له دښمن سره مقابله د مسلمانانو او هندوانو له توانه وتلې وه. په ۱۸۵۷ کي د ډهلي د پاڅون د ځپلو څخه وروسته د مغولي امپراطوری وروستنی تش په نامه پاچا بهادر شاه ظفر برما ته تبعید سو او په دې توګه د مسلمانانو د قدرت جنازه واخیستله سوه. په هغه هند کي، چي یو وخت ئې ټول اداري، پوځي او مالي قدرت د مسلمانانو په لاس کي وو، مسلمانان داسي حال ته ورسېدل چي یو وخت ئې په محکمو او حکومتي ادارو کي حتی یو مامور هم نه درلود. په ۱۸۶۹ کال کي د هند په استیناف کي اووه ویشت هندوان ول او یکي یو مسلمان پکښي نه وو. شپږویشت هندو کاتبان ول او یو مسلمان کاتب نه وو. د استیناف د نومونو د ثبتولو په دفتر کي د اووه لسو مامورینو له جملې څخه شپږ انګریزان او یوولس هندوان ول... Ibid p ۱۶۴

د دې خبري یو علت دا هم دئ چي مسلمانانو نه یوازي د انګرېزانو سره مقابلې ته ملا وتړله او له هغوی سره چنداني د خبرو کولو ته حاضر یا تیار نه ول بلکي له عصري علومو څخه ئې هم مخ واړاوه. انګلیسي ئې د کفارو ژبه وبلله او عصري علوم ئې دین او مذهب ته تاواني معرفي کړل. مسلمانانو په خپل پخواني تاریخ او په علومو کي په پخوانیو پرمختګونو افتخار کاوه او حاضرو حالاتو ته ئې چنداني توجه نه کوله. مسلمانانو خپل وخت پر دیني مسایلو او عقایدو باندي په بحثونو تیراوه، په داسي حال کي چي نورو د عصري علومو په وسله ځانونه سمبالول. A History of Muslim Philosophy p ۱۴۲۸

سید احمد بریلوي، د خپل مرشد شاه عبدالعزیز او خپل ملګري مولوي عبدالحي په څېر، هند دارالحرب وباله او د انګرېزانو په مقابل کي ئې له هر پاچا، مشر او قام څخه مرسته وغوښته. هغه فتواوي چي د ده د جهاد او مبارزو پر ضد ورکړه سوي دي ټولي د ده له وفات څخه وروسته صادری سوي دي. البته سید احمد ته یو حقیقت څرګند وو او هغه دا چي که چیري انګریزان د هند له خاوري څخه وباسي، هم بیرته د مسلمانانو عظمت نه سي ژوندی کولای؛ ځکه چي د هند تام اکثریت هندوان ول او د انګرېزانو له وتلو څخه وروسته باید واک هندوانو نیولی وای. دغه علت دئ چي هغه هم د انګریزانو په مقابل کي له هندوانو څخه مرستي اخیستلې او هم ئې د مذهبي اصلاحاتو له پاره د تبلیغ په وخت کي د هندوانو له غندلو څخه ځان ژغوره. سید احمد بریلوي یو مبارز وو، چي ښایي د هند په خاوره او سیستم کي ئې د ټول فساد علت انګرېزان بلل او د تحریک ملګري ئې په صوبه سرحد او بنګال کي د شلمي پېړۍ تر لومړیو لسیزو پوري د هغه ارمانونو ته وفادار پاته سول. انګرېزي لیکوالانو، څېړونکو او جنرالانو سید احمد او د هغه تحریک وهابي

وباله. خو موږ وليدل چې د سيداحمد او محمد بن عبدالوهاب د عقايدو، عمل او د اصلاحاتو له پاره د تحريک د محيط، شرايطو او غوښتنو تر منځ توپيرونه موجود دي. دغه راز محمد هدايت الله، چي د سيد احمد بريلوي د ژوند حالات او عقايد ئې، تر ډېرو زياتو ليکوالانو او څېړونکو، په هر اړخيز ډول څېړلي دي، وايي چي هغه يو صوفي وو. Sayyid Ahmad p ۱۴۸. دی زياتره په صراط مستقيم استناد کوي او څکه حق لري چي د سيد احمد بريلوي څخه موږ ته همدغه يو اثر را پاته دئ.

البته صراط مستقيم، لکه څرنګه چي موږ مخکي اشاره ورته وکړه، حج ته د سيداحمد بريلوي تر سفر مخکي ترتيب سوی او په عربي ترجمه سوی دئ. د حج له سفر څخه مخکي او وروسته د هغه عقايدو او عمل تغير کړی دئ. له يوې خوا موږ ګورو چي سيداحمد بريلوي او د هغه ملګري مولوي شاه اسمعيل خپله ډېره زياته توجه د زيارتونو او قبرونو د کلتور لغو کولو ته اړولې ده او مولوي شاه اسمعيل له زيارتونو څخه د مرستو غوښتلو ته د شرک په سترګه ګوري. موږ د صوفيانو په عقايدو او کتابونو کي د زيارتونو او قبرونو پر ضد چنداني څه نه وينو. بلکي برعکس، تصوف په زيارتونو، قبرونو، د کراماتو په کيسو او خيراتونو او نذرونو پايي. له سيد احمد سره د پيرانو او اخوندانو د مخالفت يو لوی علت دغه وو چي هغه د زيارتونو په غندلو سره د پيرانو او اخوندانو د لاس ډوډۍ ور څخه اخيستله. سيد احمد بريلوي او د هغه ملګري مولوي شاه اسمعيل او مولوي عبدالحی د زيارتونو او ټګانو سخت مخالف ول.

د بلي خوا، سيد احمد په عمل کي د صوفيانو سره ډېر زيات توپير لري. موږ هيڅ وخت د صوفيانو او د هغوی له کوم تحريک سره توپکونه نه دي ليدلي. صوفيانو هيڅ وخت ښارونه نه دي نيولي او هيڅ وخت ئې د استعمار او پرديو پر ضد وسله والي مبارزې ته لاس نه دئ اچولی. پر هيوادونو باندي د پرديو، حتی کفارو، د يرغلونو په وخت کي صوفيان د صبر او زغم توصيې کوي او هيڅ وخت خپل مريدان عملي مبارزې ته نه تشويقوي، بلکي هر څه چي راځي هغه له قسمته بولي او طبيعي خبره ده چي قسمت ته يوازي صبر په کار دئ. سيد احمد بريلوي د هند په نيمه وچه کي د انګريزي استعمار پر ضد داسي مبارز وو چي که خانانو او سردارانو مرسته ورسره کړې او خيانت ئې ورسره کړی نه وای، او پيرانو او اخوندانو پر هغه باندي د وهابي د الزام په لګولو سره تر يوه حده تجريد کړی نه وای نو نه يوازي به ئې د هند مځکه انګريزانو ته سره تبۍ کړې وای بلکي د هند په مسلمانانو او د سرحد د دواړو غاړو په پښتنو کي به ئې ډېر ژور او هر اړخيز اصلاحات راوستلي وای.

**ماخذونه:**


۱. د پښتونخوا د شعر هاروبهار. جم ډارمسټټر، کابل، پښتو ټولنه، ۱۳۵۶ش.

۲. د جرمني امپراطورۍ افغاني جګړه. ی. ن. تيخونوف، ژباړن: محمد طاهر کانی، جلال اباد ۲۰۰۴.

۳. نوای معارک، ميرزا عطامحمد، کابل، انجمن تاريخ ۱۳۳۱.

۴. تتمة البيان فی تاريخ افغان. سيد جمال الدين افغاني، مترجم محمد امين خوګياني، کابل انجمن تاريخ.

٥. صراط مستقیم.(أردو) مولوي شاه اسمعیل، ډهلي ۱۹۹۹.

٦. العقیده الصحیحه و ما یُضادها و نواقض الاسلام. (عربي) عبدالعزیز بن بن عبدالله بن باز،الریاض ۱۴۱۴.

٧. اقامه البراهین (عربي) عبدالعزیز بن عبدالله بن باز،الریاض ۱۴۱۴.

٨. Taqwiat-ul- Iman. By Shah Ismail Shaheed. Lahore, ١٩٩٦

٩. Kitab Al Tawhid. Shaykh Muhammad Ibn Abd al Wahab.Riyad ١٩٩٢

١٠. A History of Muslim Philosophy. Edited and Introduced by M.M. Sharif, India, ١٩٨٩

١١. The History and Culture of the Indian People volume ٩. General Editor, R.C Majumdar, Bombay ١٩٨٨

١٢. Shah Wali-Allah and his Times. Saiyid Athar Abbas Rizvi, Canbera, Australia ١٩٨٠

١٣. Sayyid Ahmad. Muhammad Hedayetullah, Lahore, ١٩٧٠

١٤. The Wahabi Movement in India. Qeyamuddin Ahmad, Calcutta, ١٩٦٦

١٥. Across the Border or Pathan and Biloch. Edward E. Oliver, London ١٨٩٠

١٦. Sitana: A mountain Campaign on the Border of Afghanistan in ١٨٦٣. Colonel John Adye, London ١٨٦٧

١٧. Afghan and Pathan a Skech. George B. Scott, C. I. E, London,١٩٢٩

١٨. The Borderland, the Country of the Pathans .H.C. Wylly,Karachi reprinted ١٩٩٨

١٩. Settling the Frontier. Robert Nichols, Oxford Press, reprinted in Karachi ٢٠٠١

٢٠. The Pathans. Sir Olaf Caroe. Oxford University Press Karachi. ١٩٨٥

٢١. Campaign on the North-West Frontier. H.L. Nevill, Lahore ١٩٧٧

٢٢. Lords of the Khyber. Andre Singer, London ١٩٨٤

٢٣. Report on the Tribes of Dir, Swat and Bajour. Captain A.H. McMahon, A.D.G.Ramsay, Peshawar ١٩٨١

٢٤. India and the Frontier States of Afghanistan, Nepal and Burma. J Talboys Wheeler, Lahore, ١٩٩٩

٢٥. The Frontier ١٨٣٩-١٩٤٧ Major-General J.G. Elliot, London,١٩٦٨

٢٦. The Pathan Revolt in North West India. H. Woosnam Mills, Lahore ١٩٩٦

٢٧. History of the Punjab. Ikram Ali, New Delhi, ١٩٩٣

٢٨. India and Afghanistan. Anuradha Sareen,New Delhi ١٩٨١

٢٩. The Indian Musalmans. W.W.Hunter, New Delhi, Reprint ٢٠٠٢

٣٠. Wahabi Islam. Natana J. Delong-Bas,Oxford University Press ٢٠٠٤

٣١. A General Report on the Yusufzais. H.W. Bellew, Lahore ١٩٨٤

٣٢. Political Leadership among Swat Pathans. Fredrik Barth, London ٢٠٠٤

٣٣. Frontier and Overseas Expeditions From India( Selection from Government Records) Reprinted in Quetta Pakistan ١٩٨٢

٣٤. The Story of Swat, as told by the founder Miangul Abdul Wadud Badshah Sahib to Muhammad Asif khan. Peshawar ١٩٦٣

٣٥. Kandahar Newletters for the Years ١٨٩٥-١٨٩٦. Volume ٧, Quetta ١٩٨٩

٣٦. Notes on Afghanistan and Baluchistan. Major Henry George Raverty, Quetta Pakistan, ١٩٨٢.



بشیراحمد بشارت

# شهید پتیال د خپل وخت ترجمان

د شاعر د حساس ځواک هري ذره بیني پېښې او حرکت ته په ډېر حساس نظر ګوري، چې د خپل چاپېریال او ټولني د لځو او پټو اجسامو عکاسي تر عادي خلکو په ښه هنرمندانه انداز سره کوي.

هره منفي پېښه ئې د شمعي په څېر په پټه خوله ژړوي او نورو ته روڼا ورکوي او هره مثبته پېښه ئې زړګی په سینه کي باغ باغ کوي.

په دې اړه یو ادبپوه وایي: هنرمند شیان لکه څنګه چي دي هغسي نه ویني، بلکي داسي ئې ویني لکه څنګه چي دی خپله دئ.

د پورته پېښو له ترکیب څخه د حساس شخص له خوا یو هنر په وجود راځي. د همدغه هنري ځواک په ملتیا هري پېښې ته جلا رنګ، خوند او جامه ورکوي او هر نامانوس شی مانوس لوري ته بیایي.

اروانباد پتیال هم د خپل چاپېریال د ناتمامو پېښو تصویرونه په ډېر هنر او لوی زړه د ادب په البوم کي خوندي کړي دي. په لاندي نمونه کي ئې په ځونده جرئت د واقعي حالاتو انځور وړاندي کړی دئ:

**کندهار نه دئ زما زړه دئ، څه غوبل دي باندي**
**جـــوړ کی**
**د ځانمرګو حـــملو دود دئ، پر جوړ کړی دي**
**خونبار دئ**

که څه هم لوناچارسیکي وایي: ادبیات د تصویرونو هنر دئ او په هغه کي لځ او تبلیغاتي افکار زیان رسوونکي دي، خو پتیال د خاص ضرورت له مخي د هغو پېښو تصویرونه د تاریخ لمن ته سپارلي دي، چي زر کاله بعد به هم

افغان قوم دغه غم لړلي او په وينو خيشتې ښلګي لولي، د خپلو پلرونو او نيکه ګانو ژوند به د څنګه حالت سره پرتله کوي.

څکه خو شهيد پتيال خپله داسي وايي:

**څه هوس څه به خوښي کړم، څنګه وخاندم په زوره**
**دلـته ګام پر ګام ملــګرو انديښنه ده پټه - پټه**
**هسي نوم ئې د دنيا دئ که نه جــوړه قتلګاه ده**
**تر هر پل لاندي خونکاره توره سره ده پټه - پټه**

هسي خو هم د پښتنو ژوند د پېلوځي په څېر دئ، څکه د هر اور د بلېدو له پاره له دوی څخه کار اخيستل کېږي. نو چي ژوند د نغري په منځ کي سو حتماً به قتلګاه څني جوړېږي. پر هر ګام به قتلېدونکي نظرونه په کمين کي ورته ناست وي او د تورو په دې ګرم بازار کي به د انديښنو سره سرې څنګه پر زخمي شونډو تبسم ونڅوي.

شهيد پتيال په ټپه څوانۍ کي داسي درياب ته ورلوېدلی وو چي له هري خوا څخه توپانونو د وينو څپې راوړلې او د ساحل غېږه ئې په خوب هم نه وليدل. مګر په داسي مرګوني حالت کي ئې د سر په نذرانه کولو او د ځان په سپر کولو سره د جانان ژغورنه کوله:

**له ساحــله ناآشنا يم پر توپان بانــدي راګــرځم**
**د خپل سر په نذرانه کي پر جانان باندي راګرځم**

پتيال د تشو الفاظو په اوډلو بسنه نه کوله او نه ئې خپل ذاتي هنر تر ورځنيو خبرو قربانوی. هغه د ناخوالو د ذکر تر څنګ هنريت ته هم ژمن وو، څکه ئې د محيط پېښي په شاعرانه لوښي کي وړاندي کولې.

په لاندي بېلګه کي د ريګانو (ر)، دالونو (د) او ګام پر ګام کليمو ئې بيتونو ته موسيقي ورکړې ده او تر څنګ ئې د اوړدې غميزي انځور په دوو بيتونو کي ژر ذهن ته لاره کوي.

په دې اړه چيني سردار لوچي وايي: موږ لايتناهي فضا په يوه لوېشت کاغذ کي ځايوو او له دوو ګوتو فضا څخه سېلاب رابهوو:

**د زخمونو سوداګره بل ځـــای مه وړه پرهارونه**
**دلته ګام پر ګام دردونه يو څــه نور راوړه دردونه**
**پرشتې دي شاهداني د آسمـان زړه ئې څيرلی**
**په دې خړه غوندي سيمه کي لړو داسي سرونه**

د زخمونو سوداګر ته يوازي هغه څوک بلنه ورکولای سي او زخمونه رانيولای سي چي د داسي راکړي ورکړي سره عادت وي او په اصطلاح د داسي ګټې او تاوان په کيسه کي نه وي.

هغه د داسي زخمونو څخه خوند اخيستی، همداسي زخمونو د بري توان ورکاوه. ځان ئې د هغو سرزورو له ډلي څخه باله، چي د ځنځيرونو په شرنګي کي ئې جهان -جهان مستي ليدله.

د خپلي ښايستې ځوانۍ په غرور دونډي غره وو، چي هغه تش په نامه خپل، پردي، تورو او سرو ته يو ځای په غېږ ورتلی او تر زړګيو ئې د غرور تېغونه ورايستل:

**د غـــرور په زور به وباســو تېغونه تر زړګـــيو**
**هم د خپل، هم د پردي هم د سورمخو هم د تورو**
**په شرنګي د ځنځيرونو کي جهان جهان مستي ده**
**که نه جوړ او روغ پتيال دئ خو له ډلي د ســر زورو**

د هنر عمده ځانګړنه د ژوند انعکاس دئ، په همدې وسيله هنر له ساينس څخه جلا کېږي. د ساينسپوه نړۍ د واقعيتونو او پديدو علمي نړۍ ده. خو هنرمند برعکس د دې ذهني نړۍ خيالاتو او احساساتو ته

ور ننوزي. ساينس پوه په يوه ټاکلې ځانګه کې د څېړنې په لړ کې خانګړې پوهه تر لاسه کوي، ليکن هنرمند هڅه کوي چې نړۍ ليد ته جسم او بڼه ورکړي.

شهيد پتيال هم د ټولنې پېښو ته منظومه جامه وراغوستل.

د پښتو ادبياتو په تاريخ کې شايد دا کيسه ځينو ډېر ځله لوستې وي، چې امير کروړ ډېر غښتلى او کلک سړى وو، چې په يوازې سر به د سلو تنو سره جنګېدى او له همدې اسيته کروړ او جهان پهلوان بلل کېدى، ځکه خو هغه د خپل ځان په هکله داسې ويلي دي:

زه يم زمرى پر دې نړۍ له ما اتل نشته
پر هند و سند و پر تخار و پر کابل نشته
بل پر زابل نشته – له ما اتل نشته

خو د يوويشتمې پېړۍ اتل همدې ته ورته دعوه لري او د امير کروړ په څېر د ټولو جنګياليو سره يوازې جنګېدلى او بريالى ځني راوتلى دئ، ځکه خو دى همداسې راته وايي:

څه ساده جګړه خو نه ده تار په تار مې رقيبان کړل
پرې سرونه راســـره دي خـــالي لاس نه يم راغلى

د اروابناد پتيال دغسې له جرئت ځخه ډکې او زېړې خبرې يوازې تر شعر پورې محدودې نه وې، بلکې هغه به په هر مجلس او بانډار کې همدغسې په يو خاص زړه ور انداز سره کولې، مايوسي او د حالاتو ځخه وهم په فکر کې لا نه ورګرځېدی، نو ځکه فطري جرئت ئې نظم ته هم لاره کړې وه، دا بېلګه:

که جنګ تود سو پر ما رغ کړئ چې دا مخکه سره تبى کړم
بې د غشـــــــو د مست واره نه دروزم – نه دروزم

يا:

څه که سر بايلو آسمانه څو ورځو چې هر څه کېږي
د رندانو په خلاصـــــون کې تر زنـــدانه به ورځـــو

يا:

چې د برېت تاو يې له رقيب څخه کوګل وکاږي
هغه څـــوان نه ورځي يارانو د ناځـــوان تر کوره

خو د دې جنګونو او مبارزې نتيجه دا سوه، چې د ځوانيمرګى پر ښاخ ئې چپه کې، هغه د مستو احساساتو څخه ډک مغز، د ځوانۍ له شوره څخه ډک فکر او هڅاند قلم ئې د لحد په خونه کې ورسره بندي سول.

*******

ټولوونکى: حاجي محمد رزمي

## ګل خبرې

- هغه څوک چې غواړي پر خلکو حکومت وکړي لومړى بايد پر خپل ځان باندې حاکم سي.
- که د موسيقۍ اواز د طبيعت تر ږغونو زياته اغېزه لري په دې سبب ده چې طبيعت موږ ته د ژوند په باره کې احساسات راکوي خو موسيقي موږ ته احساسات معنا کوي.
- جګړه غله په نس مړوي خو سوله هغوى په دار ځړوي.
- دوستي د عسل په شان ده خو ټوله مه خوره.
- مه پرېږده چې لومړۍ ناکامي دي له رزم څخه واچوي.
- تر اندازې زياته ازادي انسان او ټولنه مريتوب ته بيايي.

********

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# «کږ» او «کږخولی»

څو روځي مخکې د پښتو د عرفاني ادب د عالیمقام شاعر- علي محمد مخلص (تر ۱۰۶۹ ه ق پوري په یقین سره ژوندی) د دیوان د نوي علمي او انتقادي متن د ټایپولو په لړ کي و هغي غزلي ته را ورسېدلم، چي مطلع یې داسي ده:

د مولا پر لار سم نه ځي نابینا کږ
یو سر بل سر در بل گرزي له هُدا کږ

په غزله کښي مي د «کږ» ردیف په لیدو سره، دوې خبري جگي وسترگو ته وردېدې.

- یوه خبره دا ائدېښنه وه، چي که دا ټکی د «معیاري پښتو» و محتسبینو ته په لاس ور سي، نو سمدلاسه به د بې قاعدگۍ ټاپه پر و وهي؛ او بې څېړني و پلټني به «کوږ» ځني جوړ کي.

- دوهمه خبره هغه تاریخي کیسه ده، چي څو دېرش کاله دمخه مي د داوّد خان د «جمهوریت» په کلو کښي د خلگو له خولې اروېدلې وه.

په دې لنډکۍ مقاله کښي غواړم پر دې دوو اړخو له گرانو لوستونکو سره د زړه خواله وکم، چي په واقعیت کښي هم ژبپوهنه او لغتپوهنه ده؛ او هم تاریخ و سیاست.

د ایتیمولوژۍ له نظره خو د پښتو «کږ **kaz**» او «کوږ **koz**» یا د پارسي «کز **kaz**/ کژ **kaž**» مفغنه بڼه برېښي یا دواړه (پښتو او پارسي) ټکي په لږ ودېر بدلون، له یوې اریایي ریښې څخه را وتلي دي. د پارسي ژبي «کج **kaj**» هم د دغه «کز/کژ» اوښتې بڼه ښکاري، چي د «جیم» برخه یې تر ډېره حده معرب رنگ لري؛ ځکه د پهلوي/ پارسي ژبي ځیني کلیمې لکه «نرگس»، «نارنگ»، «برنامه»، «باژ»، «کاژ»، «ناژو/ کاژو» او داسي نور په عربي ژبه کښي یا د عربي ژبي د نفوذ له مخي

په «نرجس»، «نارنج»، «برنامج»، «باج»، «کاج»، « ناجو/ کاجو» او داسي نورو اوښتي دي. د پاړسي په لرغونو متنو کښي د «کژ» او «کژی» ټکي خورا ډېر تر سترګو کيږي؛ مثلاً حکيم ابوالقاسم فردوسي توسي (۳۲۹ – ۴۱۱ هـ.ق) وايي:

به گيتی بِه از راستی پيشه نيست
زِ کژی بتر هـــيچ انديشه نيست[1]

د اسلامي عِرفان تلپاته او ځلانده ستوري – مولانا جلال الدين بلخي رومي (۶۰۴ – ۶۷۲ هـ.ق) په خپل «ديوان شمس» يا «ديوان کبير» کښي د «کژ» کليمه داسي راوړې ده:

هين کژ و راست می روی باز چه خورده ای بگو
مست و خراب می روی خانه به خانه کو به کو[2]

البته، د دې خبري روښانول، علمي څېړنه او پلټنه غواړي، چي پښتو «کږ» د پاړسي «کز/ کژ» مفغنه بڼه ده، که د پښتو او پاړسي دواړي کليمې د جولې په اړولو سره له بلي ژبي (اوستا) څخه را ژېړېدلي؛ او تر څه پړاوو وروسته په دې بڼو اوښتي دي. د «کږ» د ريښه پېژندني په اړه دمګړی همدا څو ټکي کافي ګڼم؛ ځکه د يوې کليمې تر پلار و نيکه پېژندلو د هغې په اوسني مانا، استعمال او ګرامري ځانګړتياوو ځان پوه کول، ډېر ارزښتمن او ضروري کار دئ.

«کوږ»، «کاږه»، «کږه»، «کږې» په ټولو پښتنو کښي ژوندۍ او مستعملي کليمې دي؛ خو «کږ» د پښتو په ګردو لهجو کښي ژوندۍ او مروَجه نه ده. د پښتو جنوب – لوېديځي لهجې دا لرغوني ټکی تر اوسه پوري په خپلو روځنيو خبرو او مرکو کښي ژوندی ساتلئ دئ. «کوږ» او «کږ» دواړه په حقيقي مانا د «کاږه»، «خم سوي»، «تاو سوي»، «د راسته يا سيده ضد» مفهوم بيانيي؛ خو «کږ» کليمه زياتره په مجازي ډول د «بې لاري» ، «ناکاره»، «مُنحَرِف»، «ګمراه» او«مُضِل» په مانا استعماليږي. زموږ مشرانو او پخوانو هم د علي محمد مخلص په څېر «کږ» ټکی په مجازي مانا کاراوه؛ مثلاً ويل بې (به يې): «پلانی لوی کږ دئ.»، «له پلاني کږ څخه ځان ساتئ!» او داسي نور. که څه هم «کږ» د «کوږ» مخففه يا لنډه بڼه ښکاري؛ خو سره له هغه هم هر ځای د يو بل پر ځای نه کاريږي. په اوسنيو محاورو کښي د «کوږ» صفت زياتره د ساده يا غيرترکيبي ټکو په بڼه استعماليږي؛ مثلاً خلګ وايي: «دېوال کوږ دئ.» هيڅکله نه وايي: «دېوال کږ دئ.» خو په ځينو ترکيبي ټکو کښي بيا د «کوږ» پر ځای معمولاً «کږ» ټکی کاريي؛ مثلاً: کږ خولی (هغه ځوک، چي مورزاده يا د ناجوړۍ په سَوَب يې خوله کږه يي)، کږ سترګی (چېک، عين و غين، چغر، اَحوَل، کاژ/ کاج...)، کږلېچ (په غرو کښي تنګه او کږه وږه لار، کوتل، ورسک...) او داسي نور. البته، د پښتو په جنوب – لوېديځه لهجه کښي پر دغو ټکو سربېره، ځيني نور ترکيبي ټکي هم په لنډو يا اختصاري بڼو پراخ استعمال لري؛ مثلاً: ړندوالی (ړوند والی، ړندېدل)، زړوالی (زوړوالی، زړښت)، پخوالی (پوخوالی)،

سړوالی (سوړوالی، سړښت)، رغوالی (روغوالی، رغېدل، جوړېدل) او داسي نور. دا ټول مخففات یا لنډیزونه د پښتو ژبي د لغوي او ادبي زېرمي ارزښتناکه برخه ده، چي هیڅکله باید په خبرو او لیکنو کښي له پامه و نه غورځول سي. لکه څنګه چي «کږوالی» باید په «کوږوالی» الیش نه سي، پخوالی او رغوالی هم باید هیڅکله په «پوخوالی» او «روغوالی» وا نه ړوَل سي. عمرونه په کار دي، چي «کوږ» د «کږ»، پوخوالی د «پخوالي» او «روغوالی» د «رغوالي» بڼه واخلي.

یوه بله مهمه خبره دا ده، چي «کږ» کلیمه باید هیڅکله په خبرو او لیکنو کښي له «ګږ **gaz**» کلیمې سره ګډه نه کو. دا لرغونې کلیمه د بَبَر (په وېښتانو ډک، هغه څوک چي پر مخ سرېبره یې پر پزه او غوږو هم اوږده وېښتان شنه یي) او پاخه سړي په مانا د جنوُب - لوېدیځي لهجې په روخنیو خبرو او مکالمو کښي مروَجه ده.

د ژبپوهني او لغتپوهني په رڼا کښي تر دې لنډو خبرو وروسته را رسېږو و هغي کیسې ته، چي د «کږ» له دغي کلیمې سره تړاو لري.

عزیزانو! څو دېرش کاله مخکي د داؤد خان د «جمهوریت» په کلو کښي، په کندهار کښي، د غلو او پایلوچانو یوه پیاوړې ډله پیدا سوه، چي جمعه ګل، پستکی، عیسی محمد (د کندهاریانو په اصطلاح عیسامد) او نورمحمد (د کندهاریانو په اصطلاح کږخولی نورماد) یې ډېر مشهور او سرغنه غړي وه. په خلګو کښي اوازه وه، چي دا ډله له غریب او مسکین سړي سره غرض نه لري؛ یوازي پر لویو سوداګرو او مړو خلګو حملې کیي؛ او له دې لاري تر لاسه سوي پیسې او مالونه له بېوزلو سره شریکیي. دا چي دا ډله ریشتیا هم عیاران یا د کندهاریانو په اصطلاح «پایلوچان» وه که مازي غله او لوچګان. یوازي هغه څوک ښه قضاوت کولای سي، چي له نیژدې یې ور سره پېژندل؛ او په هر کرتوت یې پوره خبر وه. زموږ په شاوخوا کښې چا د نامیتوب او غښتلوالي نخښه نه وه لیدلې.

خیر، دا وخت د کندهار والي د داؤد خان د خاله زوی ؤ، چي چاغ، لوړ، سوّر، سپین، مَعمَره او معزز سړی ؤ. کندهاریانو د نرم او پاسته طبیعت له اسیته د پسه نوم پر ایښئ ؤ. د فوټبال په موسمي لوبو (ټور نمینټو) او ځینو نورو تشریفاتي غونډو کښي بې منظمه برخه اخیستله؛ خو د ولایت د اداري او انضباط هیڅ خوند یې نه ؤ. ښایي د حکومت مشرانو له همدې خاطره د امنیې داسي قومندان ورته را لېږلئ ؤ، چي د ده د کمزوري اداري خلا ډکه کي؛ او د پردې تر شا د ولایت د چارو واګي په خپل لاس کښي و نیسي. ویل کېده، چي د کندهاریانو په اصطلاح دا «اور خوره» قومندان د وخت د کورنیو چارو د وزیر راسته لاس دئ. هغه وزیر چي خپله هم ډانګ په بغل ګرزېدئ؛ او بې «انقلابي رهبره» یې له هیچا څخه سترګه نه کېدله. البته، دې واک او ځواک یې ځان ته خاص علت لاره. وزیر صاب د عسکري منصبدار په توګه د «رهبر صاب»

په سپینه کودتا کښې تر ټولو فعاله برخه اخیستې وه؛ او تر هر چا سرتېر او وفادار وزیر ؤ.

قومندان صاب و کندهار ته له خپل راتګ سره جوخت پر غلو او بدماشانو کلک ګوزارونه پیل کړل؛ او په لږ وخت کښې و لویو بریاوو ته ورسېدئ. د ډلي له غړو څخه د سرپوزې د غره د کلي اوسېدونکی، پستکی، و وژل سو؛ جمعه ګل د خلګو له خولې و نورو ملکو (غالباً ایران یا پاکستان) ته و تښتېدئ؛ کرخولی نورماد له څینو نورو بې نام و نښانه ملګرو سره د قومندان صاب په ګوتو کښېوتئ. د ډلي یوازنی غړی، چې تر هغه مهاله ازاد ګرزېدئ، عیسامد ؤ. په خلګو کښې اوازې او ګنګوسې وې، چې عیسامد جېمز باند فیلمو غوندي کله په دریشي، کله په ملي کالو، کله په کندهار، کله په کابل یا نورو ولایتو کښې پر لویو سوداګرو حملې او غوټې وهي. په دغو کلو کښې د کابل له یوه تجارتي سرای څخه په سپینه روڅ د څو لکو نغدو پیسو تښتول هم پر عیسامد او ملګرو تاوان سوه.

که څه هم د کندهار عامو خلګو د غلو او بدماشانو د ورکېدو یا بند و زند تود هرکلی وکئ، خو د قومندان صاب له زور زیاتي او دیکتاتور مآبۍ څخه هم راضي نه ښکارېدل؛ ځکه قومندان صاب نه یوازې د غلو او لوچګانو په نیولو او بندي کولو کښې تر خپلو قانوني صلاحیتو تېرى کاوه، بلکې له عامو خلګو او حتا خپلو حکومتي مامورینو سره یې هم ښه او اخلاقي چلن نه کاوه. د دې خبرو تر څنګ، قومندان صاب د خپلې قومندانۍ او نورو مربوطو ادارو د منصبدارانو او مامورینو په جرمو او پسات (فساد) هم هیڅ سر نه ګرځاوه. په امنیه قومندانۍ، پاسپورټ، ترافیکو، محبس، د پولیسو په ماموریتو او داسي نورو ولایتي ادارو کښې هره روځ په سوو ناروا وې کېدلې، خو هیچا و قومندان صاب ته د شکایت کولو جرأت هم نه کاوه. د دې خبرې مانا دا وه، چې یا خو قومندان صاب په خپله هم د ظاهراً نېک شهرت پر خلاف په پوست پاک نه ؤ؛ د خپلو منصبدارانو او مامورینو په هر پسات کې غوښینه ونده لرله یا دا چې د خپلو افسرانو او مأمورینو و رشوتو، رنګارنګ ناوړو استفادو او بېلابېلو خیانتو تې (ته یې) له لویه سره د جرم او سرغړوني په ستر ګه نه کتل.

خیر، کرخولی نورماد تر نیول کېدو وروسته په سرپوزه کښې د کندهار و عمومي مابس (محبس) ته راوستل سو. زموږ کور و مابس ته دو نه نیژدې ؤ، چې کله کله به له لیرو سیمو څخه راغلو مېلمنو د شپې د پیره دارانو د نارو او شورماشور په سَوَب تر سهاره خوب نسوای کولای. د مابس مدیر او څینو منصبدارانو هم زموږ په شاوخوا کښې ژوند کاوه. په دې وجه نو د مکتب پر اندیوالانو او کوڅه والو سربېره د مابس د مدیر او نورو افسرانو د زامنو پر لاس هم، د مابس او بندیانو په مشهورو کیسو خبرېدم.

په هغو روځو کښې ویل کېده، چې قومندان صاب له کرخولي نورماد څخه د اقرار اخیستلو په مخسد (مقصد) پر هیڅ راز شکنجې او تعذیب صرفه نه کوله. د کرخولي

نورماد د وهلو ټکولو خبري هر ځای زما غوږندي سترګه وږونکو او متشبثو ښاريانو په مجلسو کښې پورته او کښته کېدې. د خلګو له قوله، که څه هم د کړخولي بدن له ډېرو ټپو څخه چنجي وکړل، خو قومندان صاب يې بيا هم د اعدامولو په هيله د اقرار په ترلاسه کولو نه بريالی کېدئ. وايي کړخولي به وځار نوالانو او امنيتي مسؤلينو ته ويل: «غلا مي کړې ده؛ ډاکه مي وهلې ده، خو نه مي د چا پر ناموس تېری کړئ دئ؛ او نه مي څوک وژلئ دئ ... »

سره له دې هم د خلګو په قول قومندان صاب قَسَم اخيستئ ؤ، چي کې له خپلي پرېکړي او غوښتني سره سم په کړخولي اقرار و نه کئ، نو ماينه (مېرمن) به پر طلاقه يي. خلګو نکل کاوه، چي کړخولي به تر وهلو ډېلو وروسته و قومندان صاب يا د هغه د شکنجې او تعذيب ډلي و نورو غړو ته دوې درې کوچنۍ ډبري ور و غورځولې؛ او په پوزخند او ډرۍ بې ورته ويل: «دا دئ صاحبه! اقرار ځني واخله!»

شک نه ؤ چي قومندان صاب فرعون صفته پوليس ؤ، د کړخولي د غلا او ډاکې په اقرار يي غاړه نه ايستله؛ ځکه د جزا د قانون د حُکمو له مخي د غلا د جرم سزا دوږنه نه وه، چي د قومندان صاب خښم او قهر ور سوړ کي. ښايي د ځينو مشهورو مجرمينو په اعدامولو سره يې په ټول افغانستان، په تېره بيا کندهار کښې د سام او وحشت د داسي فضا را منځ ته کول مخسد ؤ، چي د هغې تر سيوري لاندي د نورو بالقوه مجرمينو د جُرمو او جنايتو مخه ونيسئ؛ خو له دې چال چلن څخه يې برالا ښکارېدله، چي قومندان صاب د جزا په حقوقو (Criminal Law)، جزا پوهني (Penology) او جُرم پوهني يا کريمينولوژۍ (Criminology) شک هم نه ؤ؛ ځکه مُجرِم ته په جزا ورکولو کښې د سزا (retribution)، فردي او عمومي انتباه (individual and general deterrence) تر څنګ د هغه بيا روزنه يا تجديدِ تربيت (rehabilitation) هم ډېر ارزښتناک او ضروري اړخ دئ. جُرمپوهان خو د جرمو په مخنيوي کښې د مجرمينو د فردي او رواني کمزروييو پر سمون سربېره د ټولني د سياسي، اجتماعي، اقتصادي، فرهنګي او داسي نورو شرايطو سمون او ښه والی هم ډېر ارزښتناک، بلکي ټاکوونکی ګني. دغه راز، ځيني جزاپوهان د لنډ مهالو او ژر تېرېدونکو اغېزو له وجي، د اعدام د جزا و اغېزمَنتيا ته د شک او ترديد په سترګه ګوري.

عزيزانو! څه سر به مو ګرزوم، قومندان صاب له کړخولي څخه د انسان وژني او نورو مشدده جرايمو په اقرار تر لاسه کولو کښې تر خپلي ناکامۍ او شرمندګۍ وروسته و کابل ته مخه کړه؛ او هورې يې د وزير صاب او نورو اورخورو دوستانو په ملګرتيا د کړخولي او يارانو د اعدامولو هلي ځلي شرو (شروع) کړې. مياشتي لا نه وې تېري، چي نابېره په مابس کښې د کړخولي او څو ملګرو د اعدام خبري تودې سوې. سره له هغه هم خلګو باور نه کاوه؛ ځکه بې اقراره اعدام د شريعت او قانون له احکامو سره اړخ نه لګاوه؛ مګر افغانستان بله مځکه وه. شريعت، قانون، بشري عاطفې

او داسي نورو د واکمنانو و ضديت او لجاجت ته هيڅ قيمت او ارزښت نه لاره. کې لرلای ښايي محمدهاشم ميوندوال غونډي نامتو او نومور سياستوال به هم په هغسي درد، عذاب او بې حسۍ نه وژل کېدای.

څه اورېدې او لنډې به در ته کوم، په داسي حال کښي چي د ښار خلگ د قومندان صاب و زور زياتي او لجوجانه کسات اخيستني ته گوته په غاښ وه، کرخولی نورماد له څو نورو انډيوالانو سره د سرپوزې په مابس کښي په دار و ځړول سول. دا مو لا هم وارورېدله، چي کرخولی په اول وار ځړېدلو سره مړ نه سو؛ ځکه يې نو دوهم وار بيا وځړاوه؛ او دا پلا يې تر هغه مهاله په دار ځړولئ ؤ، چي په مړ کېدو کې هيڅ شک پاته نه سو.

کرخولی نورماد که بې اقرار او شواهدو دوه پلا په دار و ځړول سو، د قومندان صاب پاچهي هم تر ډېره پاته نه سوه. د کرخولي د مظلومانه ځړولو کيسې لا د خلگو له حافظو څخه نه وې هېري سوي، چي د پرچميانو د نامتو مشر، مير اکبر خيبر، د نابېره وژني له کبله، په کابل ښار کښي د خلقيانو او پرچميانو د پراخو مظاهرو خبرونه خپاره سول. د خيبر له مرموزي وژني څخه را پيدا سوو خرو پړو سياسي – امنيتي حالاتو د داوّد خان حکومت، په تيره بيا د هغه امنيتي او استخباراتي اورگانونه له خورا لوی ازمويښت سره مخامخ کړي وه. ويل کېده، چي قومندان صاب د خپل ماجرا غوښتونکي او اورخوره طبيعت د ارضا کولو او لوړ دولتي مقام د تر لاسه کولو په خاطرد وخت د کورنيو چارو له وزير څخه په ټينگار غوښتنه کيي، چي د کابل د کړکېچنو سياسي – امنيتي حالاتو د ډاډمني اداري دپاره يې ژر تر ژره و کابل ته ور وغواړي.

وزير صاب چي د پخوانۍ انډيوالۍ او همفکرۍ پر بنسټ يې د هغه پر ډيسپلين، انضباط او بې رحمۍ پوره باور لاره، په ډېري خوښۍ کابل ته د هغه د ورتگ غوښتنه ومنله؛ خو وروسته ثابته سوه، چي قومندان صاب د کابل د سياسي – امنيتي حالاتو د کنټرول دپاره نه، بلکي د مرگ و منگولو ته د ځان سپارلو په خاطر و کابل ته ورغلئ ؤ. قومندان صاب به ښايي د کندهار – کابل د لاري سترياوي لا پوره نه وې ايستلې، چي د داوّد خان د «جمهوريت» مانۍ په ساعتو کښي نسکوره سوه. قومندان صاب هم د نورو اجل نيولو په څېر ځان د ياغي سپرو و لېوني تاړاک ته ور رسولئ ؤ. لکه څنگه چي ده، وزير صاب او نورو همفکرو ملگرو يې پر کرخولي نورماد زړه نه ؤ سوځلئ، د قضا سپرو هم د دۍ (د دوی) پر حال رحم و نه کئ.

زمانې تيري سوې، خو د کرخولي نورماد او قومندان صاب د مرگ دردناکه خاطره لا تر اوسه په زړه کښي ژوندۍ پاته ده. ما مابس ته د نيژدې والي او خپل پلټونکي طبيعت له مخي دا او داسي نوري دردونکي پېښي له نيژدې څخه څارلې او پلټلې. اوس هم زرونه کيلومتره ليري د سرپوزې د کوچني مابس پر ډراماتيکو پېښو سربېره، د لوی مابس د هري روحي پېښي او حالات څارم. د

خلقي او پرچمي قومندانانو د فرعونيت او ذلت صحنې مې په سترګو ولیدې؛ د جهاد د سوداګرو او کاغذي زمریانو د انسان وژنې، ورانکارۍ او بالاخره نامردانه تښتې عبرتناک جریانات مو هم د سترګو و مخ ته تېر سول؛ د طالب زورواکو د کېبل وهلو، اولس رټلو او رانده افراطیت کیسې مې هم په زوَر او زېر واروېدلې؛ او دا دئ له څه باندې دیرلسو کالو راهیسې د خپلو او پردو د داسې ناروااوو او ناکردو شاهد یم، چې قلم یې له لیکلو او بیانه عاجز دئ. روځې او شپې په چټکۍ سره تېرېږي. هیڅوک نه پوهېږي چې سبا به څه پېښیږي: څوک به بیا د دې خوږمن او کړېدلي هیواد د تاج و تخت واګې په لاس کښې اخلي، خو یوه خبره لمر غوندې روښانه ده؛ او هغه دا چې: هر چا همېشه خپل کړلئ کښت رېبلئ؛ او هر څوک به تل تر تله هغه څه رېبي، چې کرلي یې!

--------

۱. حسن عمید، فرهنگ عمید، ۳جلد، چاپ دوم. (تهران: امیر کبیر، ۱۳۶۵) ۳: ۱۹۶۶.

۲. جلال الدین بلخی، کلیات شمس (دیوان کبیر)، با تصحیحات و حواشی بدیع الزمان فروزانفر، جزء سوم. (تهران: امیر کبیر، ۱۳۵۵) غزل شماره ۲۱۵۴.

******

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- بریالیتوب حتی احمق سړی لا هوښیار ایسوي.
- ازاد فاسد خلک خرابترین غلامان دي.
- هغه غل چې د غلا کولو چانس نه لري ځان صادق سړی بولي.
- همغه راز چې زه نه سم کولای چې مریې واوسم، نه غواړم چې بادار هم واوسم.
- هغه څوک چې د ېرپوهیږي لږ خبري کوي.
- هیڅوک د پټ استعداد ستاینه نه کوي.
- هغه څوک چې له دار څخه بېرېږي هیڅکله به غل څني جوړ نه سي.
- هغه یوازنی راز چې ښځه ئې ساتلای سي هغه دئ چې دا په خبره نه وي.
- زړورتوب د بېرې په وړاندې مقاومت کول او پر هغې باندې غلبه کول دي نه د هغې پر موجودیت باندې سترګې پټول.
- کوچني غله په زندان کې لوېږي، لوی غله پر چوکۍ باندې کښېني.
- په ژوند کې تر ټولو سخت کار سم فکر کول دي.
- پسته ژبه هډوکي ماتوي.
- د احمق ژبه دومره اوږده ده چې د ده خپل سر ور پرې کولای سي.
- ښه ښځه پټه خزانه ده، هر نارینه چې ئې کشف کړي هغه به د نړۍ تر ټولو نېکمرغه انسان وي.
- هر وخت چې په قهر کېږې اول د هغه د عواقبو به باره کې فکر کوه.
- نفرت د هغې سکروټې په شان دئ چې اول پخپله تا سوځوي.

********

ليکوال: زنه فين



مترجم: واحد فقيري

# د سقراط تلپاته نظريات

**دوهم کتاب**

**څلرم فصل**

## د رفاقت په باب د سقراط بحث

په همدې لړ کي، زما د سقراط يو بل بحث هم په ياد دئ چي د يارۍ او رفاقت په باره کي مي ترې اورېدلی دئ، او ښايي همدا بحث زموږ سره د ملګرو په پيدا کولو کي ډېر زيات ګټور او عبرتناکه وي. او کېدای سي چي دا هم راته وښيي چي څرنګه له اندېوالانو سره ګوزران وکړو. سقراط ويل: «اکثره خلګ په دې باور دي چي رشتين او زوړ يار په هر څه ارزي، (زوړ يار زين کړی اس دئ. مترجم) مګر موږ بيا هم د ښو ملګرو د ميندولو په برخه کي بيخي لږ زحمت کاږو. موږ د کور، مځکي، مريانو، حيواناتو، او د ژوندانه د نورو ضروري شيانو په رانيولو کي ښه احتياط او پام کوو؛ او کله چي موږ همدا شيان واخلو، په ساتلو کي

ئې هم ښه کوښښ کوو. مګر له بده مرغه که څه هم زموږ یو ملګری د دې توان او قابلیت لري چې موږ ته خوشحالي راوړي، خو بیا هم موږ د ملګرو په پیداکولو کې لازمه هڅه نه کوو. ځیني خلګ خو بیا دونه احمق وي چې حتی خپل مریان پر خپلو یارانو باندي ښه ګڼي. هغوی د خپلو ناروغو یارانو تر شفا د خپلو مریانو روغتیا ژر غواړي، ځکه کله چې د هغوی مریان مریض سي، سمدستي ډاکټر ورته راغواړي او د علاج کوښښ ئې کوي. که چیري د دواړو– یار او مریي– اجل راغلی وي، د خپلو دوستانو تر مرګ د خپلو غلامانو مرګ ورته ګران وي. او د خپل مریي پر قبر به د خپل ملګري د ګور په تناسب زیاتي اوښکي توی کړي. مانا دا چې هغوی د بل هر شي ښه خیال ساتي، مګر نه د خپلو انډیوالانو. هغوی په خپل ورځني کاروبار کي د هر کوچني شي د تغییر په مورد کي دقیق وي، حتی هله چې د ده نظارت ته هیڅ ضرورت هم نه وی. خو د هغو ملګرو په باره کي غفلت کوي چې د ده پوښتني ته اړتیا لري. لنډه دا چې که څه هم هغوی زیات جایدادونه او ثروت لري، خو د ټولو حساب دقیق ورته معلوم وي. بلخوا، که څه هم هغوی ډېر کم یاران لري، خو بیا هم د خپلو یارانو شمېر ورته معلوم نه وي. د خپلو ملګرو په باب د هغوی بېخبري دونه ژوره وي چې که د یارانو د نومونو پوښتنه ترې وسي، هغوی سمدستي وارخطا او چورتي غوندي سي. له دې څخه دا ښکاري چې هغوی د خپلو انډیوالانو په اړه څونه کم فکر کوي. خو حقیقت دا دئ چې په دنیا کي تر ښه یار بل ښه شی نسته؛ هیڅ مریی ستاسو له منافعو او ځان سره دونه علاقه نه لري لکه یو ښه انډیوال چې ئې لري. هیڅ اس د ښه یار په پرتله خدمت نه سي درته کولای. په بل عبارت، هیڅوک او هیڅ شی په هر زمان او هر مکان کي د یو ښه انډیوال غوندي کومکي نه سي کېدلای. ځکه یو ښه یار په شخصي، مدني، او سیاسي چارو کي غوره مشوره در کوي، او ستا کاروبار او اجتماعي ژوند درته سمبالولای او چلولای سي. د مثال په توګه، که چیري یو څوک د یو چا مرستي ته ضرورت ولري، د هغه یار هڅه کوي چې د خپل دوست له پاره یو بل کومکي وزر سي. په مقابل کي، که چیري یو وخت هغه په خطرناکه حالت کي وي، د هغه ملګری د ده مرستي ته سمدستي ځان ورسوي. بل وخت هغه خپل ملګري ته له خپله جایداده یو څه ورکړي، او کله ئې په خپل مټ ملاتړ کوي. کله هغه د خپل ملګري په تشویقولو کي مرسته کوي، او کله ئې بیا په رامجبورولو او راایسارولو کي کومک کوي. ښه دوست او انډیوال په ثروت او خاني کي د خپل ملګري خوشحالي لا زیاتوي. اما په تنګسه او بد حالت کي د خپل ملګري کومکي وزر کېږي، او زحمت ئې راکموي. له خپلو لاسونو، پښو، سترګو، او غوږونو څخه استفاده کول دونه ګټه نه سي رسولای لکه چې یو ملګری ئې بل انډیوال ته رسولای سي. ځکه اکثراً هغه کارونه چې زموږ له پاره واره داره دي، مګر موږ ئې په یوازی سر نه سو کولای، یو انډیوال ئې د بل یار له پاره کوي. دا به څونه لوی حماقت وي چې د یوې باغچې ونې او تاکان ښه وساتل

سي، څو وروسته مېوه ورکړي، مگر د هغه لوی او بختور باغ – يعني ښه انډيوالي – خيال و نه ساتل سي، حال دا چي د رفاقت محکه او حصول تر بل هر څه ښه او خوندور دي».

دو هم کتاب

پنځم فصل

## د يارانو ارزښت او قيمت

هغه څه چي ما په تېر فصل کي ياد کړل، په همدې لړ کي به زه دلته په دې باب د سقراط يو بل بحث بيان کړم. البته، تر هغه ځايه چي زما په ياد دي. سقراط په دې مباحثې کي خپل اورېدونکي دې ته هڅوي چي خپل په گرېوان کي سر کښته کړي او خپل ځان وارزوي، څو په دې پوه سي چي د ده ياران په څونه ارزښت ورته قايل دي. ځکه کله چي سقراط هغه کس وليد چي خپل انډيوال ئې په سخته مفلسي کي ايله کړی وو، سقراط له انتيستانيس څخه دا پوښتنه د هغه کس او څو نورو کسانو په حضور کي وکړه: «ايا موږ ته دا ممکنه ده چي پر خپلو يارانو باندي هسي قيمت کښېږدو لکه څنگه چي ئې پر مرييانو باندي اېږدو؟ يو مريی ښايي د سپينو زرو په څو ډکو خلتو باندي وارزي، مگر بل ښايي په پنځو هم و نه ارزي. بل ښايي د سپينو زرو په پنځوس کڅوړو وارزي، او ها بل ښايي په سل وارزي. ما اورېدلي دي چي نيسياس، د نيسراتوس زوی، يو مريی د سپينو زرو په شپېرسوو خلتو باندي رانيوی. دا کار ئې په دې مقصد وکړ، څو همدا غلام ئې د سپينو زرو د کانونو ناظر سي. اوس نو، ايا ته فکر کوې چي موږ بايد پر خپلو يارانو باندي هغه شان قيمت ولگوو لکه څنگه چي ئې پر خپلو مرييانو باندي اېږدو؟»

انتيستانيس په جواب کي ووېل، «زما په گومان موږ بايد همدا کار وکړو ځکه چي هلته داسي کسان سته چي د هغوی د دوستۍ له پاره به زه د سپينو زرو تر شلو ډکو خلتو تېر سم. البته، بله ډله سته چي د هغوی د ياري له پاره به تر پنځو خلتو څخه هم تېر نه سم. خو په عين حال کي، زه داسي کسان هم پېژنم چي د هغوی د رفاقت د گټلو له پاره به زه خپله گرده شتمني ورکړم».

سقراط ورته ووېل: «که چيري خبره داسي ده، نو بيا به دا درست کار وي چي هر څوک پر دې باندي غور وکړي چي د خپلو ملگرو په مينځ کي څونه ارزښت لري، او هم تل په دې لټه کي وي چي د هغوي په مينځ کي ځان تر هغه ځايه چي امکان لري باارزښته کړي، او هڅه وکړي چي هغوی ئې کله هم خوشي نه کړي. ځکه کله نا کله يو څوک ما ته وايي چي کوم يار ئې ورسره ناځواني او خيانت کړی دئ، او بل څوک راته وايي چي پر هغه ملگري چي ده سخت باور لاره هغه دوست په ډېر کم شي خرڅ کړی دئ. اوس نو، زه پر دې مسئلې باندي سوچ کوم چي ايا لکه څنگه چي موږ له يوه بېکاره او لټ مريي څخه ځان ژر خلاصول غواړو، ايا همدا راز کله چي موقع برابره سي موږ به له بد خلقو يارانو څخه ځان ژر خلاص نه کړو؟ ځکه زه گورم چي خلک هغه مرييان ژر نه خرخوي چي ښه او کارگر وي، او نه هم خپل وفادار ملگري خوشي کوي».

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# سیلما لاگرلوف

(Selma Lagerlof)

(۲۰ نومبر ۱۸۵۸م–۱۶ مارچ ۱۹۴۰م)

**(دوولسمه برخه)**

دې سویډنۍ ناول لیکونکي ته په ۱۹۰۹م کي نوبل ادبي جایزه ورکړه سوه. نوموړې په نړۍ کي لومړنۍ مېرمن وه، چي نوبل ادبي جایزه ئې وګټله.

د لاګرلوف آثار له ناروېژي نکلونو او تاریخ سره ډېري ژوري اړیکي لري. کله چي دې په لیکنه پیل وکړ، نو په دې وخت کي د ریالیزم ادبي مکتب په خپل عوج کي وو. که څه هم په دې وخت کي له دې مکتب څخه انحراف ستونزمن کار وو، خو نوموړې نه یوازي دا چي د دې مکتب پیروي و نه کړه، بلکي د دې مکتب برعکس ئې د شمالي سویډن د بزګرانو ژوند او فطري منظرې په خورا رومانتیک او تخیلي انداز سره بیان کړې. ورنر وان هیډن ستام (Verner Von Heidenstam) په رومان لیکنه کي د هغې لوی حریف وو. نوموړي هم په ۱۹۱۶م کي نوبل ادبي جایزه وګټله.

د دې یو اثر د (The Wonderful Adventures of Nils) په نامه وو. دغه اثر د شلمي پېړۍ په لومړۍ لسیزه کي خپور سو. دا د نوموړي لومړنی اثر وو، چي نړۍ وال شهرت ئې ترلاسه کړ. دغه کتاب د ښاپېریو د نکلونو په سبک لیکل سوی دئ.

لاګر لوف د سویډن په جنوبي ولایت وارم لینډ (Varmland) کي وزېږېده. پلار ئې

متقاعد نظامي افسر وو. په کوچنيوالي کي هغې د خپل نيکه او انا سره په کروندو کي ژوند کاوه. په دغه وخت کي نوموړې له نورو کوچنيانو څخه لېري وه، انا به ئې د ساعت تېري په خاطر د ښاپېريو نکلونه او کيسې ورته کولې، په دې بهير کي به ئې کله ناکله د وارم لينډ د پخوانيو پاچاهانو د شاهانه او پرتمين ژوند فلکوريک داستانونه هم اورېدل.

لاگرلوف د سټاک هوم[1] د سلطنتي ښځو د عالي روزني په اکاډمۍ (Stockholm Royal Women's Superior Training Academy) کي داخله واخيسته او په ۱۸۸۲م کي د ښووني او روزني له څانگي څخه فارغه سوه. له دې وروسته ئې له ۱۸۸۵م څخه تر ۱۸۹۵م پوري د لينډز کرونا (Landskrona) سيمي د نجونو په يوه ښوونځي کي د ښوونکي په توگه دنده تر سره کړه. د همدې دندې پر مهال ئې په ناول ليکنه پيل وکړ. لومړنی ناول ئې د(The Story of Gosta Berling) په نامه وو. لاگرلوف دغه ناول د يوې مشهوري مجلې (Idun) ادبي سيالۍ ته ور ولېږی. که څه هم ياد سوی ناول لا بشپړ سوی نه وو، خو د سيالۍ د کمېټې له خوا د جايزې مستحق وگڼل سو او يوې خپرندويي ټولني د پوره کتاب د چاپ قرارداد ورسره لاسليک کړ.

لاگرلوف د خپل دوست بيرنس سوفي ايلډسپير (Baroness Sophie Aldesparre) په مالي مرسته سره پورتنی ناول پوره کړ او په ۱۸۹۱م کي ئې خپور کړ. په لومړي سر کي ناول له توقع څخه بېخي کم خرڅ سو، خو کله چي نامتو اديب جارج برينډز (George Brandes) د دې اثر پر ډنمارکي ترجمه باندي اوږده سريزه وکښله، نو د کتاب مينه وال دونده پر ډېرېدو سول، چي دغه اثر په سويډن کي د رومانيزم د بېرته راژوندي کېدو سبب وگڼل سو.

د پورتني ناول کيسه د يوې مځکي په اړه ده. مځکه په وارم لينډ کي موقعيت لري. دغه مځکه د مهم جويانو د يوې ډلي لاس ته ورځي او هغوی ئې خرابوي. د دې خرابۍ تر شا د يو بد اخلاقه شخص سنټرام (Sintram) پلان پټ وي. په دې دوولس کسيزه ډله کي يو ځوان د گوستا (Gosta) په نامه وي. د ناول دغه ځوان اتل خورا خون سرده سړی وي. د هغه پر کشښه شخصيت خلک ځان ته کشوي. د ژوند حالات نوموړی دې ځای ته رسوي، چي له يوې کونډې (کاونټس اليزابت) سره واده وکړي. گوستا د خپلو هڅو او د اليزابت د نفوذ په نتيجه کي په دې بريالی کېږي، چي ځان ته سوکاله او ارام ژوند جوړ کړي. په ۱۹۲۴م کي پر دغه ناول فلم جوړ سو. د دې فلم په لوبغاړو کي گريټا گاربو (Greta Garbo) هم برخه لرله.

په ۱۸۹۴م کي د لاگرلوف د (Invisible links) په نامه د لنډو کيسو ټولگه خپره سوه. مجموعه له خپرېدو څخه لږ وروسته د بريالیتوب پړاو ته ورسېده. په همدې کال لاگرلوف له خپلي همزولي ليکوالي سوفي ايلکن (Sophie Elkan)سره وليدل. هغوی يو د بل ښه ملگري سوې. د سوفي تر مړني وروسته لاگرلوف د هغې د ژوند ليک په ليکلو

[1]- د سويډن پلازمېنه

پیل وکړ، خو مرګ ئې د بشپړېدو مخه ډب کړه. په ۱۹۹۲ل کې د لاګرلوف د هغو لیکونو مجموعه خپره سوه، چې د سوفي ایلکن په نامه ئې کښلي ول.

کله چې کنګ آسکر د لاګرلوف په نامه فیلو شپ حواله کړ او سویډن اکاډمۍ مالي مرسته ورسره پیل کړه، نو نومړې د نفقې د پیدا کولو له فکره بې غمه سوه او خپلې ټولې ذهني او فزیکي هڅې ئې لیکوالۍ ته وقف کړې. هغې په فالن (Falen) کې هستوګنه پیل کړه او د ژوند ډېره برخه ئې هلته تېره کړه. کله چې هغه او ایلکن د ایټالیا او سسلي له سفره راستنې سوې، نو نومړې د سسلي په اړه د (The Miracles of Antichrists) په نامه یو سوسیالستي ناول چاپ کړ. تر دې وروسته نومړې د یوه کال له پاره د مصر او فلسطین په سیل ولاړه. تر دې سیاحت وروسته ئې دوه آثار چاپ سول. له دې آثارو څخه ئې لومړی اثر په ۱۹۰۱م کې د (Jerusalem: I Dalarne) په نامه چاپ سو او دوهم ئې په ۱۹۰۲م کې د (Jerusalem: I Det Hiligo Landet) په نامه. د دې آثارو چاپ هغه د سویډن د لومړي صف په لیکوالو کې ودروله.

د لاګرلوف د داستانونو یوه ټولګه د نونسمي پېړۍ د وروستۍ لسیزي پر پېښو لیکل سوې ده. د دې کیسو له مطالعې څخه سړي ته دا څرګندیږي، چې پر یوه کلیواله او سنتي ټولنه باندي د مذهب پالني هڅې پر هغه ټولنه څنګه انتشاري اغېزي پاشي. د دې مجموعې ټایټل کیسه (د یروشلم د زیارتونو حواله) په نامه ده. په کیسه کې یوه پخوانۍ بزګره کورنۍ خپله د کر مځکه په یوه لیلام کې خرڅوي او هڅه کوي، چې په دې پیسو د زیارتونو وسایل پوره کړي. د همدې کورنۍ یو بل کس په دې خاطر خپله کورنۍ پرېږدي او له یوې شتمني ښځي سره واده کوي، تر څو خپل خانداني جایداد او کروندې له خرڅلاوه وژغوري.

نومړې لا کوچنۍ وه، چې پلار ئې مړ سو او کورنۍ ئې پوروړې سوه. د دې پورنو د ادا کولو له پاره هغوی خپل کور خرڅ کړ. له شاوخوا څلورو لسیزو وروسته په ۱۹۰۴م کې نومړې یو ځل بیا په دې وتوانېده، چې ځان ته یو کور رانیسي.

هغې د کوچنیانو له پاره هم کیسې ولیکلې. د دې کیسو تر ټولو مشهور کتاب ئې (The Wonderful Adventures of Nils) وو. که څه هم لاګرلوف د دې ډول کیسو الهام د رډیارکپلنګ د حیوانانو له کیسو څخه اخیستی وو، خو په اصل کې هغې دغه کار د ابتدایي ښوونځیو د بورډ په غوښتنه کړی وو او هدف ئې دا وو، چې کوچنیانو ته د سویډن د جغرافیې د تدریس په اړه مرستندویه کتابونه تهیه کړي. (The Wonderful Adventures of Nils) د یو داسي څورلس کلن هلک کیسه ده، چې د خپلي ځان غوښتني او خشنګۍ له لاسه ټیټی ورڅخه جوړیږي او قد ئې ښځي کوچنی کېږي. نیلز د یو خوار بزګر زوی وي. د هغه لوی مصروفیت خوراک او څښاک وي، تر دې دوو کارونو وروسته ئې بل کار شیطاني او خشنګي وي. یوه ورځ هغه د فارم پر یوه هېلۍ باندي کښېني او په هوا کې د هېلیو په سېل

(ډله) ګډ سي. د هېليو سېل د شمال لور ته روان وي. نيلز له دې سېل سره د خپل هيواد (سويډن) د طول و عرض سفر کوي او د نه ځان غوښتني درس ورڅخه اخلي. په کيسه کي خورا اغېزمنه اخلاقي فضا موجوده ده. همدارنګه د فطرت د درناوي په اړه داسي پيغامونه لري، چي د نني انسان له پاره ډېر اړين دي. نيلز په دې سفر کي کله پر مځکه وي او کله په هوا کي، په دې ډول هغه د سويډن د خلکو د ژوند د رنګارنګۍ مشاهده کوي.

لاګرلوف په دې داستان کي د نيلز په ژبه د خپل هيواد د جغرافيې، تاريخ او پخوانيو اساطيرو په اړه ډېر څه روښانه کړي دي. په ۱۹٦٦م کي چي جاپاني ناول ليکونکي او (Oe) نوبل جايزه وګټله او نومورۍ د خپلي جايزې د ترلاسه کولو له پاره سټاک هوم ته ورسېدی، نو يادونه ئې وکړه، چي دغه کتاب هغه په کوچنيوالي کي څو پلا لوستی دئ او هر وار ئې د سويډن په اړه د خپلوۍ احساس کړی دئ. د دې کتاب يو بل مداح فلسوف کارل پاپر (Karl Popper) وو. نومړي په خپل کتاب (Undended Quest) کي په دې اړه کښلي دي: "ما څو کلونه دغه کتاب لږ تر لږه په کال کي يو، دوه او درې پلا لوستی، د وخت په تېرېدو سره ما د لاګرلوف هره ليکنه تر يو واري ډېره لوستې ده"

لاګرلوف په خپلو څو ناولونو او کيسو کي خيال داسي وړاندي کړی دئ، چي د خوب او حقيقت تر منځ بېلوالی په کښي ګران وي. په ۱۹۱۲م کي د هغې يو بل ناول (Korkarlen) چاپ سو. د ناول د موضوع بنسټ يوه کيسه ده. د دې کيسې پر بنسټ په خلکو کي مشهوره وه، هر کس چي د کال په وروستۍ شپه تر ټولو وروسته مړ سي، نو هغه به راتلونکی ټول کال د مرګ خوند څکي. لاګرلوف په دې مافوق الفطرت کيسه کي ټولنيز مسايل رانغاړلي دي. پر دې ناول باندي وکټر سائيوسټروم (Victor Sjostrom) په ۱۹۲۱م کي د (Phantorm Carriage) په نامه فلم جوړ کړ. دغه فلم د سويډن په سترو کلاسيکو فلمونو کي ګڼل کېږي.

په ۱۹۱۴م کي نومړې د سويډن اکاډيمۍ غړې مقرره سوه. تر لومړي نړيوال جنګ وروسته ئې ليکني لږ سوې. د دې دوران يو ناول ئې د (Kejsarn Av Portugaiien) په نامه په ۱۹۱۴م کي چاپ سو. د دې ناول کيسه د رښتيا، درواغو او خيال امتزاج دئ. ډېر کسان دا د لاګرلوف تر ټولو ستر ادبي اثر ګڼي.

په ۱۹۱۸م کي ئې يو بل ناول (Bannlyst) چاپ سو. د دې ناول مرکزي خيال د سولې پر اړتيا راڅرخي. په ناول کي د جنګ د بربادېو او تباهيو تصوير په خورا ښه ډول وړاندي سوی دئ. نومړې د فين لنډې ليکوال زيکرس ټوپيليئس (Zachris Topelius) ژوند ليک هم وکيښ او خپله اټو بيوګرافي هم وکښله. دغه اثر څو ټوکونه لري او د تېري پېړۍ په لسمه لسيزه کي ئې خورا ډېر مينه وال درلودل.

د لاګرلوف پر لنډو کيسو د ښاپېريو د کيسو اغېزې سته. ځيني وختونه داسي

معلومېږي، چې نومورې په خپلو کیسو کې د وکټوریا د زمانې د مافوق الفطرت کیسو له ځینو عناصرو څخه هم کار اخلي. د دې یوه کیسه د (Old Agneta) په نامه ده. د دې کیسې کرکټره یوه بوډۍ وي. دا بوډۍ د یو پلن واورین غره په لمن کې په یوه کوډله کې اوسي. هغه داسي فکر کوي، چې د یخ او یوازیتوب له امله ئې وجود فلج سوی دئ. همدارنګه نومورې احساس کوي، چې د هغې ژوند هیڅ معنا نه لري، نو بالا باید ومري. یو راهب بیا هغې ته وایي، چې ته یوازې نه یې، بلکي په دغه واورینو غرو نو کي چي کوم خوپ او غبار ګرځي، دا د لالهانده ارواوو ټولۍ دي. له دې وروسته اګنیټا (د کیسې د کرکټر نوم) د خپلي کوډلي څراغ د دې له پاره بل ساتي، تر څو هغه ارواوي پر راټولي سي، چې د رڼا او تودوخي پسي لالهانده وي. بوډۍ له ځان سره فکر کوي، چي "که د مځکي پر مخ موجود زاړه کسان د خپلو زړونو دروازې خلاصي نه کړي، نو د مړو ارواوي به په دې سخت یخ کي چیري پناه وړي؟" بوډۍ چي کله دا کار وکړي، نو خوشحاله سي، ځکه هغه د ژوند کولو جواز پیدا کړي او د هغې پر مړینه واورین غر د ارواوو په کوچنیو، کوچنیو ژړبخونو لمبو سره روښانه سي.

کله چي لومړی نړۍ وال جنګ پیل سو، نو لاګرلوف د هغو روشنفکرانو او هنرمندانو مرسته وکړه، چي د نازیانو د ظلم او ستم له ببري له جرمني څخه په تېښته ول. هغې الماني شاعر نیلي سکس (Nelly Sachs) ته د سویډن وېزه ور واخیسته او هغه ئې له مرګه وژغوری. همدارنګه کله چي فن لینډیانو د شوروي اتحاد د یرغل پر وړاندي جګړه پیل کړه، نو هغې د نوبل جایزې طلایي مډال د جنګ د لګښت له پاره ورکړ. د فن لینډ د محاصرې پر مهال هغې د خپلو هیوادوالو حوصله لوړوله، په بېلابېلو مرستندویه کارونو کي ئې برخه اخیسته او د همدې مبارزې په دوران کي د ۱۹۴۹م د مارچ پر ۱۶ نېټه د زړه د حملې له امله وفات سوه.



(٦)

# د کابل پیغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

## پرتمین هرکلی

ارشد او مسعود کور ته راغلل او ډوډۍ ئې وخوړل. یو ګړی ئې دمه وکړه او بیا ئې د ماپښین لمونځ ادا کړ او مسعود ولاړی. ارشد هم خپلې مور ته ورغی. پر ده خپله مور خورا ډېره ګرانه وه. مور ئې هم تر ده ځان قربانا وه.

دواړه یو ګړی سره ناست ول او مجلس ئې کاوه څو چې مازیګر سو او ارشد هم مخ د اشرف د کور پر خوا روان سو. اشرف د دوی کور ته نږدې اوسېدی. ده د اشرف ډېره ستاینه وکړه. ارشد ده ته ټولي هغه خبري وکړې چې تېره شپه ئې اورېدلي او لیدلی وې. اشرف داسي ورته وویل: ډېر بد وخت دئ، څومره د افسوس ځای دئ چي دومره لوی شخص مګر دومره له حماقته ډک انسان وي. ښه سو چي ما بیعت ورته و نه کړ، که نه نن به مي بیرته فسخ کاوه.

ارشد: هو بالکل همداسي ده. آیا ته فرقې ته ورغلی وې؟

اشرف: هو ورغلی وم. د شېرخان او عبدالرحمن دواړو سره مي ولیدل او هغوی ویل چي اعلیحضرت بیرته تشریف راوړي.

ارشد: زه هم د مسعود له خولې همداسي خبر سوم. ته خو به د شېرخان کور ته نه یې ورغلی؟

اشرف وخندل او ویې ویل: نه مي ضرورت درلود او نه هم ورغلی یم.

ارشد: هغوی ستا ډېره پوښتنه کول.

اشرف: هغوی یعنی چا مي پوښتنه کول؟

ارشد: مهربانو او نورو.

اشرف: هغوی به ما ولي یادوي، برعکس تا به ډېر یادوي.

ارشد: ما به ولي څوک یادوي!

اشرف: تا به هر هغه شخص یادوي چي حتی یو ځل یې درسره لیدلي هم وي. دا لا څه، بچهٔ سقاو لا هم ته یاد کړې.

ارشد: هغه هیڅ شی نه دئ بلکي دا ټوله د شوربازار د حضرت کارونه دي.

اشرف: هر څه چي دئ، خو هغه ستا ډېره پوښتنه کوله او د شوربازار حضرت هم ته ډېر خوښولې.

ارشد: شاید ته هم ما خوښوې.

اشرف: زه خو له ډېره وخته تا خوښوم.

ارشد: ښه، لطفاً مهرباني وکړه او ووایه چي حُسن...

د ارشد پر خوله نابېره د حسن جهاني نوم راغی خو له شرمه ئې یوازي د «حُسن» کلمه ذکر کړه او پوره نوم ئې و نه سو اخیستلای. اشرف هم وخندل او ویې ویل چي هو، هو، مهرباني وکړه.

ارشد: حُسن په دنیا کي یو عجیب شی دئ. اکثراً د حُسن جلوه او ښکلا سترګي پیکه او مړاوي کوي.

اشرف: هو بېشکه، خو الله همداسي حُسن یوازي حُسن جهاني ته عطا کړی دئ.

ارشد: بېشکه حسن جهانه؛ هو هغه ډېره ښایسته ده، مګر زما د خبري مطلب له هغې څخه نه وو.

اشرف: هو، تا وویل او ما ومنل! تېره شپه به دي خبري ورسره کړي وي.

ارشد: یا، صرف ومي لیدله، او په لیدلو خو هیڅ نه کېږي.

اشرف: که دي زه هم درسره بېولی وای نو د مجلس موقع به حتماً رامنځته کېده.

ارشد: دا څکه امکان نه لري چي هغه دومره شرمناکه نجلۍ ده چي خبري خو پرېږده آن سترګي هم د کتلو له پاره نه راپورته کوي.

اشرف: دا د ډېر ګرانښت او محبت علت دئ چي کومه ښځه د چا سره مینه لري نو هغه ته لږ ګوري.

ارشد: دا راته ووایه چي ته کله ځې؟

اشرف ځان ناخبره واچاوه او ویې پوښتل چي: «چیري»؟

ارشد: د شېرخان کور ته.

اشرف: چي کله ته ووایې هغه مهال به خو.

ارشد تر لږ غور او فکر وروسته وویل: ښه، اوس نه، کله چي مناسبه وي ور به سو.

تر یو څه نور مجلس وروسته ارشد د اشرف څخه رخصت واخیست او خپل کور ته روان سو. دا ټوله ورځ ئې پر ځان تېره کړه او دوهمه ورځ چي کله فرقې ته ورغی نو خبر سو چي غازي امیر امان الله خان ډېر ژر راستنېدونکی دئ. د هغه له پاره د هرکلي ترتیبات نیول سوي دي. ارشد داسي انګېرل چي د شوربازار د حضرت پروپاګنډ افغانان پر غازي امان الله خان باندي بدګومانه کړي دي. خو رعیت به د خپل پاچا تود هرکلی وکړي. دی ټوله ورځ په همدې سوچونو او تشویشونو کي ډوب وو. د شپې هم څو څو واره په همدې فکرونو کي بند پاته وو. خو په دریېمه ورځ سهار د حکومت له خوا په بازارونو او عامه ځایونو کي د غازی امان الله خان د راستنېدو د ټاکلي نېټې د اعلانولو په توګه لوی لوی

پوستېرونه ولګېدل. د هیوادوالو څخه وغوښتل سوه چي د خپل محترم پاچا د زړه له تله او پرتمین هرکلی وکړي. څنګه چي اړونده نېټه نږدې وه نو عوامو هم ښه چمتوینه ونیوله. بازار ښکلی کړای سو. سړکونه او کوڅې ښه پاکي سوې. کوچنیان، خوانان او زاړه ټوله ډېر خوشحاله ول.

ورځي تېرېدې او چمتویني ښه په موج کي رواني وې. د شوربازار حضرت چي دا ترتیبات لیدل نو له غمه په زړه کي خوړل کېدی. بالاخره هغه ورځ راورسېده چي د افغانستان مدبر، منور، هیوادپال او اولسپال واکمن داروپا له سفره بیرته راستنېدی.

دا د جمعې ورځ وه. د کابل ټوله ښار د ناوي غوندي مزیَن او ښکلی سوی وو. په هره برخه کي دروازې دروَل سوي وې چي په شنو پاڼو او تازه ګلانو سره پوښل سوي وې.

ماشومان له خوښیو څخه غورځېدل. ځوانان په ناز او جګه غاړه ګرځېدل. زاړه خوښ او خندان ول. دا داسي ورځ وه چي د کابل پر ښار د تازه ګی څپې او ولولې اورېدلې. هر څوک موسکی او ډېر خوشحاله معلومېدی. غازي امان الله خان پر لسو بجو رارسېدی خو د خلکو راتګ او ګڼه ګونه آن له سهار وختي لا راپیل سوې وه. له ښاره دباندي جوپه جوپه خلک راغونډ سوي ول. پر نهو بجو پوځیان او تشریفاتي قطعه راورسېدل او د سړک پر څنډه په دوو قطارونو کي ودرېدل. نندارچیان او له نږدې څخه د خپل پاچا لیدونکي کسان د پوځیانو تر شا ودرېدل.

پوره لس بجې وې چي پر سړک باندي له لیري دوړي راښکاره سوې چي وار په وار ډېرېدې او راپورته کېدې. خلکو په ډېره مینه مخونه هغې خوا ته اړولي ول او په مینه ئې کتل. دوړي نوري هم پسي ډېري سوې. موټر په یو څه ګړندیتوب راروان وو او خلکو په ولولو سره ورته کتل. د همدې کتلو په دوران کي د دوړو لمن سوری سوه او څو موټرونه راښکاره سول چي په سرعت سره راروان ول. پر هغه موټر چي د ټولو څخه مخکي راروان و د افغانستان جنډه رپېدله.

کله چي موټر نږدې راغی نو خلکو په غیر ارادي توګه د الله اکبر نارې ووهلې. همدې شعارونو دوام درلود چي د توپونو ږغ تر غوږو سو چي یو په بل پسي اورېدل کېدل. دا د افغانستان ټولواک ته سلامي وه چي کېدله. پنځلس دقیقې وروسته د توپونو دغه درََبهار ختم سو. کله چي له ږغه ډکه فضا آرامه سوه نو غازی امیر امان الله خان له موټره راکښته سو. د ده په لیدو سره د ده وفاداره رعیت د «ژوندی دي وي د افغانستان شهریار»، «د امیر امان الله خان عمر دی اوږد وي» پرله پسې شعارونه ورکول.

امیر امان الله خان تر ټولو مخکي د نایب السلطنه سردار ولی محمد خان سره روغبړ وکړ. بیا ئې د والی سردار علی احمد جان سره او وروسته ئې د خپل ورور سردار عنایت الله خان او په پای کی ئې د سلطنت د چارواکو، د ښار د معززینو او مخورو سره روغبړ وکړ.

د دغو اشخاصو سره تر روغبړ وروسته د بلخ، کندز، میمنې، خلم، آقچې او اندخوی

والیانو خپل خپل سوغاتونه تقدیم کړل. امیر امان الله خان د هغوی ټولو سره ډېره مینه او صمیمیت وښود.

کله چې د خلکو سره دا مصافحې ختمې سوې نو امان الله خان په یو سرخلاصي موټر کې کښېناست. اړونده مسؤلینو منظم مارش (لاریون) ترتیب کړ. تر ټولو دمخه باجه والا ګروپ د مستو نغمو په ږغولو سره حرکت پیل کړ. هغوی ډېره خوږه او زړه راکښونکې نغمه ږغوله.

تر باجه خانې وروسته پوځیان، بیا د تشریفاتو قطعه او بیا د اعلیحضرت امیر امان الله خان موټر، تر هغه وروسته د والیانو موټرونه او بیا نور چاړواکي او په آخر کې ټوله ننداړچیان روان ول. دا لاریون دومره اوږد وو چې تر هغې ورځې په افغانستان کې هیڅکله داسې لوی او پرګنیز لاریون نه وو لیدل سوی. افغانانو په مینه او خوښۍ سره شعارونه ورکول او مخته تلل. ښځو د کړکیو او پردو شا ته دغه لاریون ته کتل او پر خپل پاچا ئې ګلان شیندل. په موټر کې د ګلانو باران جوړ وو.

کله چې لاریون بازار ته راورسېد نو ارت او پراخ بازار بیخي تنګ سو. امان الله خان چې د خپل رعیت ولولې او اخلاص ولید نو د ډېر اطمینان او حفاظت احساس ئې وکړ. لاریون پر پوره دوولس نیمو بجو شاهي مسجد ته ورسېد او هلته ودرېد. امان الله خان او د لاریون ټول ګډونوال شاهي مسجد ته ننوتل. که څه هم شاهي مسجد ډېر غټ دئ خو ګڼه ګوڼه دومره زیاته وه چې په مسجد کې نور نو د پښه ایښوولو ځای نه وو. په زرګونو کسانو په مسجد کې د اضافه ځای د نشتوالي له امله دباندې صفونه تشکیل کړل او کښېناستل. لږ ګړی وروسته د لمانځه له پاره جماعت جوړ سو او ټولو انسانانو لاسونه پر نامه ونیول او د الله تعالی په وړاندې ودرېدل.

خلکو ویل چې دوه نیم الی درې لکه افغانانو د خپل معظم او محترم پاچا هرکلی وکړ. دا ټول کسان د کابل او شاوخوا سیمو څخه راغلي ول.

د لمانځه څخه تر فارغېدو وروسته امان الله خان پر منبر ودرېد چې ښه لوړ وو. هغو کسانو چې نه ئې سو کولای امان الله خان ووینې اوس ئې ښه تر الیدلای سوای.

منبر ته د امان الله خان په ختلو سره یو دم د «الله اکبر» نارې پورته سوې. د تکبیرونو تر یو څه آرامېدو وروسته امان الله خان په لوړ ږغ داسې وویل: «اې توحید پرستانو! زه تر یو اوږد بیلتون وروسته د اروپا څخه له سفره راستون سوم. زه ستاسو ټولو څخه مشکور او ممنون یم چې زما د ښه هرکلي له پاره مو دومره تکلیف ګاللی دئ. زه ځان ستاسو د محبت، وروړګلوۍ او افغاني تاج سره د وفادارانه جذبې په لیدو سره ډېر محفوظ او اغیزمن احساسوم. د خدای شکر دئ چې زما په ملت کې ئې هم د ویښتوب نخښې پیدا کړې دي. نن هر هیواد د پرمختګ خوا ته ګړندي ګامونه اخلی. اروپا خو دومره ترقي کړې ده چې سړی ورته حیرانېږي او د خدای شان ورپه یادوي. داسې ډول ډول شیان جوړ سوي دي چې په لیدو ئې انسانان هک پک کېږي. نوي او ډول ډول توپونه، مشین

گنونه، طیارې، سمندري بېړۍ، پر ریګو باندي تلونکي جهازونه، ریل ګاډي، برقي بسونه او په زرګونو بېلابېل شیان چې هره ورځ اختراع کېږي. یوه زمانه داسي وه چې انسانان یوازي پر ځمکه مسلط ول خو اوس ئې پر هوا باندي هم تسلط پیدا کړی دئ. دا ټوله د علم او فن برکت دئ. په دنیا کي هغه قوم پرمختګ کولای سي چې د علم څخه کار واخلي. یوازي دا علم نه دئ چې دوه درې دیني کتابونه ولوستل سي او بیا نو د تدریس لړۍ شروع کړي. مذهبي تعلیم حاصلول ضروري دئ، خو د هغه تر څنګ د هغو علومو زده کول هم لازم دي چې له امله ئې نن دنیا ترقي مومي. دا د ساینس زمانه ده او هر څوک چې له ساینسه بې برخي وي هغه ترقي نه سي کولای. ما د خپل سفر پر مهال داسي عجیب او نوي شیان ولیدل چې نه ئې بیانولای سم او نه تاسو پرې پوهېدای سی. ما خو داسي اراده کړې ده که ستاسي خوښه وي نو د خپل هیواد ځوانان به د علم د زده کړي له پاره اروپا ته ولېږم. آیا تاسي دغسي کار خوښوئ؟

خورا ډېر ړغونه راپورته سول چې ویل یې «هو، زموږ بالکل خوښه ده. آیا په دې سره به موږ نورو ته محتاج نه یو؟»

امان الله خان: «بېشکه، کله چې زموږ د هیواد ځوانان په علم او فن تر سمبالېدو وروسته بیرته راستانه سي نو زموږ هیواد به هم عیناً هغسي ترقي وکړي لکه نن چې اروپایي ملکونو کړې ده.

په اروپا کي یوازي او یوازي نارینه وو په سپماییزه برخه کي ترقي نه ده کړې بلکي ښځي هم ډېر کوښښ کوي. زموږ د هیواد کي ښځي بالکل بې علمه او بې خبره ساتل سوي دي. هغوی ته هیڅ ډول تعلیم نه ورکول کېږي چې له امله ئې هیواد نور هم بې وزله او مفلس کیږي. که ښځي تعلیم حاصل کړي، صنعت او حرفې زده کړي، نو په خپلو کورونو کي به ناستي وي خو عاید به تر لاسه کوي او اسراف به هم لږ سي. په اروپا کي د نجونو د تعلیم له پاره جلا مکتبونه سته او تدریس ته ئې ښځي ګومارل سوي دي. تعلیم یافته نجوني خپل خرڅ په خپله برابروي. که ستاسو خوښه وي نو زه به هم په خپل هیواد کي د نجونو مکتبونه پرانیزم».

ړغونه راپورته سول چې بالکل مناسبه ده.

امان الله خان: ما چې کوم شیان په اروپا کي ولیدل هیڅ ئې نه سم بیانولای. کله چې ترکیې ته ورغلم نو د هغوی د حالت، خوښۍ، نېکمرغۍ او سوکالۍ په لیدو مي سترګي خلاصي سوې. ان شاءالله په یو مناسب وخت کي به دا ټول درته بیان کړم. اوس د یو اوږده سفره راستون سوی یم او ډېر زیات بیان نه سم کولای. زه یو ځل بیا هم ستاسو ټولو معززینو څخه ډېر مننډوی یم.

امان الله خان له منبر څخه راکښته سو او د مسجد څخه راووتی او شاهي ماڼۍ ته روان سو. خلک هم د خوښیو په ولولو کي د خپلو کورونو پر خوا ولاړل.

نور بیا ...

لنډه کیسه:

لیکوال: انتون چخوف



ژباړه: نجیب الله زیارمل
بُن - جرمني

# ښځه له کوچني سپي سره

(دوهمه برخه)

نور د ده تر وس تېره وه، باید خپلې خاطرې ئې له یو چا سره شریکې کړې وای. ځکه په کور کې د خپلې مینې په باره کې خبرې کول نا ممکنه وه، خو تر کور دباندې - بل داسې څوک نه ول. نو آخر له کرایه نشین سره خو به د زړه راز نه شریکوي او نه به هم په بانک کې له چا سره د خپل زړه خبرې کوي. او رشتیا پر څه باندې سړی ورغیږي؟ آیا ده په هغه وخت کې مینه ورسره درلوده؟ آیا د ده او آنا سرگیونا په اړیکو کې داسې یو څه ښایسته، شاعرانه، معلوماتي یا په زړه پورې وه؟ ناچاره ئې په نا مشخص ډول د مینې او ښځې په باره کې خبرې وکړې او هیڅوک ئې په منظور پوه نه سول چې ولې، یوازې ئې مایېنې توري وروځې غور ځولې او ویې وویل:

دیمیتري، ستا سره، ځان ښکاره کول

ښه نه ایسي.

یوه شپه، د ډاکټرانو له کلپ څخه له خپل یوه حریف همکار سره، د راوتلو پر مهال یې نور طاقت ونه سواو ویې ویل:

تاسي نه پوهیږئ چي زه په یالتا کي له څرنګه یوې جذابي ښځي سره مخامخ سوئ یم!

مامور د واوري په بګۍ کي کښېنستئ او بګۍ یې روانه کړه، یودم یې بیرته د بګۍ مخ را وګرځاوه او ورغ یې کړل:

دمیتري دمیتریچ!

څه؟

تاسو د نجلۍ په اړه ریښتیا وویل: ښه د سګ ماهي بوی به ئې تلئ!

دا ډیري معمولي کلیمې وې، خو ګوروف ته ډیري، توهینونکي او ناپاکي وایسېدې. څرنګه وحشي خاصیتونه، عجبه څیرې! څه بې معنی شپې، عجه بې خونده، بې درکه ورځي! د پتو غالمغالي بازۍ، سرانښتوب، مستي، او تول وخت پر یوه موضوع باندي خبري کول. غیر اړین کارونه او خبري هغه هم پر یوه موضوع باندي، له سړي څخه د ژوند تر ټولو ښه وخت او شیمه اخلي، او په اخیر کي چا ته یو لنډ او بې مانا ژوند پاتیږي چي له هغه څخه وتل او ځغستل نا ممکنه دي، ریښتیا لکه څوک چي د لیونیانو په کور یا د مجرمانو په ډله کي ناست وي!

ګوروف ټوله شپه نه سو بیده او پلټنده وو، وروسته ئې بیا ټوله ورځ د سر په درد هم تیره کړه. او په ورپسې شپه هغه ته خوب نه ورتلئ، تمامه شپه په بستر کي ناست وو چورت ئې واهه یا به ئې د خوني له یوه کنجه تر بل کنج پوري قدم واهه. کوچنیانو نور د ده حوصله ورتنګه کړې وه، بانک زوروئ، هیڅ چیري ئې زړه نه غوښتل چي ولاړسي یا د یو څه په اړه خبري وکړي.

په دسمبر میاشت کي د کریسمس د جشن په رخصتیوکي هغه کالي سره ټول کړل او بکس یې وتاړه، چي پر یوخوا ولاړ سي او مایني ته ئې وویل، چي پیتربورګ ته ځي، چي هلته د یو ځوان آشنا د کار د پیداکیدو له پار ه لاس او پښې ووهي، - او ولاړئ و «س» ښارته. ولي؟ هغه پخپله هم سم نه پوهیدئ. د هغه زړه غوښتل چي له آنا سرګیونا سره و ګوري او خبري ورسره وکړي، که چیري امکان ولري د لیدني وعده ور سره وکړي.

ګورف «س» ښار ته سهار ورسید او په هوټل کي ئې تر ټولو ښه کوټه ونیوله. د دغي کوټې ټوله ځمکه په خړ رنګه عسکري فرش پوښل سوې وه او پر مېز باندي یوه مشوانۍ، چي له ډیرو دوړو او خاورو څخه یې رنګ خړ اوښتي وو،ورباندي د آس یو سپور معلومیدئ چي سر ئې مات پر آس ناست وو، او د تعظیم په شان ئې خولۍ له سر څخه ایسته کړې وه. د هوټل خدمتګار ده ته اړین معلومات ورکړل: فون دیدریځ پخپل شخصي کور کي د «ستارو ګونچارنایا» په کوڅه کي ژوند کوي - دا کوڅه له هوټل څخه لیري نه ده، هغه په ښار کي ټوله پیژني، ښه ژوند ئې دئ، بدایه دئ، خپل آسان لري. د هوټل خدمتګار د هغه نوم داسي تلفظ کوي: دریدیریځ.

ګوروف په سړه سینه د «ستارو ګونچارنایا» کوڅې خواته ولاړ او کور ئې پیدا کړ، پر کور باندي شاوخوا یوه اوږده خړه کټاره را ګرزیدلې وه چي په سر کي ئې مېخونه ولاړ ول.

ګورو ب، چې یوار به ئې د کور کړکیو او بیا به یې تارو ته و کتل په چورت کې ډوب سو، – «دغه ډول کتارې هر څوک و تېښتې ته اړ باسي»

هغه له ځان سره و سنجول: نن د حاضریدو ورځ نه ده، او غالباً مېړه به ئې هم کور وي، په هرحال، دا به ډیره بې نزاکتي وي، چې نابېره په کور ورننوزې او هکه حیرانه ئې کړې. که چیرې یوه پرزه خط ور ولیږم، نو هغه کیدای سي چې د مېړه لاس ته ئې ورسي. هغه وخت به بیا هرڅه خراب سي. تر ټولو ښه به دا وي چې پر یوه تصادفي حالت باندې حساب وسي. هغه دغسې په کوڅه کې د کتارو بغل ته قدم واهه او د دغه شان یوه حالت په تمه وو. ګوروف هغه صحنه ولیده چې د کور په لویه دروازه یو سوالګر ور ننوت او څرنګه سپیان باندې راچور سول. یو ساعت وروسته ئې ډیر ضعیفه آواز تر غوږو سو چې یو څوک پیانو ږغوي. په یقین سره چې دا به آنا سرګیونا ږغوله. یو دم لویه دروازه خلاصه سوه یوه زړه ښځه را ووتله، او په هغې پسې هغه شناخته سپین ببر سپي څغستل. ګوروف غوښتل چې سپي ته ور ږغ کړي، مګر د هغه نابېره زړه و دربید، او له وارخطایي څخه ئې د هغه نوم له یاده ووت چې څه نومیږي.

ګوروف ګرځید او وار په وار ئې له خړې کتارې څخه بد راتلل، هغه نور ډیر عصباني وو او له ځان سره ئې فکر کاوه، چې آنا سرګیونا د ده په اړه نور هر څه هیر کړي دي، او کیدای سي چې له نورو سره ساتیرې کوي، او دا د دغسې یوې ځواني ښځې په حالت کې طبیعي ده. چې مجبوره ده له سهار څخه تر ماښامه پورې و دې لعنتي کتارو ته وګوري. هغه خپلې کوټې ته را وګرځېد او تر ډیره پورې په کوچ کې ناست وو. نه پوهیدئ چې څه وکړي، وروسته ئې غرمنۍ وخوړله او بیا تر ډیره پورې بیده وو.

«کله چې ده له خوب څخه وروسته سترګې خلاصې کړې او تاریکه کړکیو ته ئې وکتل، – چورت یو وړ، چې دا ټوله عجبه احمقانه او سرګردانه: نور نو ماښام وو. – دا دئ خوب دې هم وکړ، د څه له پاره. اوس به نو زه د شپې څه کوم؟»

دی پر هغه چپرکټ ناست وو، چې یوه ډیره ارزانه، لکه د شفاخانې روجایي، ور باندې اواره وه، او له نفس تنګۍ څخه ئې ځان ته حملې اچولې:

«دا ئې هم ستا ښځه له سپي سره... او دا ئې هم ستا پېښه... اوس نو کښېنه دلې».

کله چې هغه د «س» ښار ته راورسېد نو د اورګاډي په تمځای کې ئې په غټو تورو لیکل سوی یو اعلان تر سترګو سو، چې لیکل سوي ول، «ګیسا» په اول وار کنسرت ورکوي. د ده هغه ور په یاد سوه او تیاتر ته ولاړ.

ګوروف له ځان سره فکر کاوه، – «ډیر امکان لري، چې دا به په داسې ننداړو کې وي، چې په اول وار وړاندې کیږي».

تیاتر ډک وو. او دلته، لکه په نورو ټولو هغو تیاترو کې چې په والیانو پورې اړه لري، له ډېر لوړ آواز خبرو څخه دالان ناراحته وو. ګرد (دوړې) تر قندیلانو لا لوړ سوین وو؛ د ننداړې تر پیل دمخه په اول کتار کې ځایي سینګار کړي ځوانان، لاسونه تر شاه ولاړ ول، او د والي د ناستې په ځانګړې ځای کې، په اوله چوکۍ کې د هغه لور ماري ناسته وه او مارماري شال ئې پراوړو وو، او پخپله والي اجیزکی. د لوژ د بخملي پردې تر شاه پټ ناست، او یواز ئې

لاسونه معلومیدل؛ د لوړ پردې ښوریدې، ارکسترا ته ډېر وخت په کار وو چي سور یې نیوئ، تر هغه وخت پوري چي ټول ننداره کوونکي راتلل او خپل ځایونه ئې نیول، گوروف سرابن سرابن هر یوه ته جلا جلا کتل.

آنا سرگیونا هم راغله. هغه په دریم کتار کي کښېنستله، او کله چي گوروف ور ته وکتل زړه ئې کښېکښېل سو، او په دې پوه سو، چي اوس نو نور د ده له پاره په ټوله نړۍ کي بل داسي نزدې، گران او مهم څوک نسته: دغه کوچنۍ ښځه، چي ارزانه عینکي ئې په لاس کي وې او د دولتي خلگو په بیروبار کي کښته پورته کېده، او په هیڅای کي ئې دپام وړ څه نه درلودل، اوس د ده خوشالي. غم او یوازنۍ ارزو وه. هغې اوس د ده ټول ئیمگړی ژوند ور پوره کاوه؛ د خراب ارکسترا له گډوډ ږغ سره، چي هیڅ نه صحیح کیدئ، دی په دې چورت کي ډوب وو، چي هغه څومره ښکلې ده. فکر ئې کاوه او په خیال کي ئې را گرځوله.

له آنا سرگیونا سره یو ځای، یو جگ خوان له کوچنیو ماتو، جگو لوېدلو اوږو سره دالان ته ننوتئ او د هغې پرځنگ کښېناست؛ هغه له هر گام سره سر ښوراوه، او داسي ښکاریدئ. چي هرگړی، یو چاته د احترام په معنی سر ټیټوي. غالباً، دا به ئې مېړه وي، هغه څوک چي دې په یالتا کي د نفس تنگۍ په یوه شېبه کي نوکر صفته یاد کړ. او رشتیا هم، د هغه په دې اوږده تنه، کوچنیو ماتو او لږ ختلې نزله کي د نوکرۍ شرم نغښتی وو، شونډو ئې د خوږې خندا شاهدي ورکوله. او د هغه د کورتۍ پر کاج باندي ځوړند د کومي علمي پوهي نښان داسي ځلېدئ، لکه د نفر خدمت شمېره.

په اوله تفریح کي یې مېړه سگریټ څکولو ته ولاړ، آنا سرگیونا په چوکۍ کي پاته سوه. گوروف، چي هم د ارکسترا تر شاه په یوه قطار کي ناست وو، هغې ته ورغلئ او په ریږدېدلي آواز او مصنوعي خندا سره یې ور ته وویل:

سلام.

هغې چي ده ته وکتل د مخ بڼه ئې والوته، پخپلو سترگو ئې باور نه کاوه او یوار بیا ئې رډ رډ په وحشت سره ورته و کتل. په لاس کي یې پیک او عینکي ټینگي کښېکښلې، ښکاریده چي له ځان سره مقاومت کوي، څو بې هوښه نه سي. دواړه چپ ول. هغه ناسته دی ولاړ وو. د هغې دې حالت ته په کتو سره چي لاسونه او پښې ئې بې اختیاره ول، گورف ئې له بیري و ځنگ ته د کښېنستو پریکړه ونه کړه. موسیقي ږغوونکو په یوه وار په سورنا او سارنگۍ پیل وکړ، یو دم دواړه سخت و بېریدل، لکه ټوله لوژ چي دوی ته گوري. هغه وو چي دا ولاړه سوه او ژر د دروازې خواته ولاړه؛ هغه په پسې سو، دواړه په دالیزو او زینو کي کښته پورته اوتره اوتره گرځیدل، او یو شمېر نارینه چي د حقوق پوهانو، معلمینو او کارمندانو، بېلابېل خاص یونیفورمونه ئې اغوستي ول؛ د دوی مخ ته دوري ایسته کیدل؛ په کوټبندانو پوري له ځوړندو بالاپوښو څخه چي تر چولو راتلونکی باد خني موښتئ د سگریټو بوی ولاړېدئ. او گوروف، چي زړه

ئې ټینګ دربیدئ چورت یووړ:

«ای خدایه! له دې خلګو، له دې ارکسترا څخه څوک پر کومه ولاړ سي...»

په دې ترڅ کې یو دم ور په یاد سول، چې څرنګه په هغه شپه چې آنا سرګیونا ئې بدرګه کوله د اورګاډي په تم ځای کې ئې له ځان سره ویل، چې نور نو د دوی تر منځ هر څه چې وه، هغه ختم سول او دوی به نور هیڅکله سره و نه ویني. خو تر ختمیدو پوري لا څونه لیري وه!

په تنګو تاریکو زینوکې، چې لیکل سوي وه «د تیاتر و تالار ته ننوتل»، هغه ودریده.

د هغې چې لا د مخ ښه الوتې وه او سا ئې لنډه لنډه کښده او هکه حیرانه پاته وه وویل، تاسو عجبه زه و بېرولم! عجبه مو وارخطا کړم! ایله چې زه ژوندۍ پاته سوم. د څه له پاره راغلاست؟ د څه له پاره؟

خو پوه سئ، انا، پوه سئ... هغه په وارخطایي سره په ډک ستوني وویل.– زارۍ درته کوم، پوه سئ...

هغې په بېري، عاجزۍ او میني سره ده ته بې حرکته کتل، څو د هغه د څیرې ټوله خطونه ټینګ په حافظه کې وساتي.

زه داسي کړیږم!– هغې د ده پر خبرو غوږ نه نیاوه او خپلي دا ئې کولې.– زه ټول وخت ستاسو په فکر کې وم، زه ژوندۍ ستاسو په فکر وم. ما غوښتل چې هېر ئې کړم، نو د څه؟ د څه له پاره تاسو راغلاست؟

تر دوی لوړ د زینو له کټارو سره دوه محصلین ولاړ ول سګریټ ئې څکول او لاندي ئې کتل، خو ګوروف ته دا بې تفاوته وه. هغه پر آنا سرګیونا لاسونه را وګرځول او د هغې د مخ، باړخوګانو او لاسونو په مچولو یې پیل وکړ.

هغې په وارخطایي سره وویل، دا څه کوئ، تاسو څه کوئ!– او دی ئې له ځان څخه پوري واهه.– موږ او تاسو بې عقلۍ ته ملا وتړله. هم دا نن بیرته ولاړ سئ، هم دا اوس دستي ولاړسئ... په ټولو مقدساتو زارۍ درته کوم... یو څوک راروان دئ!

په زینو کې له لاندي څخه لوړ یو څوک ختئ.

تاسو باید ولاړسئ...– آنا سرګیونا په پسهاري سره زیاته کړه.– اورئ دیمیتري دیمیتریچ؟ زه ستاسو و لیدو ته مسکو ته درځم. زه هیڅکله خوشبخته نه وم، زه اوس بدبخته یم، او هیڅکله، هیڅکله به خوشبخته ونه اوسم، هیڅکله! مه مې اړباسئ چې زه نوره هم رنځ و ګالم! قسم چې و مسکو ته درځم. اوس نو سره جلا کیږو! زما محبوبه، مهربانه، زما ګرانه، نور نو بیلتون دئ!

هغې د ده لاسونه ورکښېکښل او سمدلاسه په زینو کې کښته روانه سوه او ده ته ئې تر شا کتل، د هغې په سترګو کې معلومیدل، چې ریشتیاهم خوشبخته نه وه. ګوروف لږ نورهم معطله سو، غوږ ئې ونیو، کله چې کراري سوه، له کوټبند څخه ئې خپل بالاپوښ را واخست او له تیاتر څخه ووت.

آنا سرګیونا هم د ده د لیدو له پاره مسکو ته تګ راتګ پیل کړ. په دوو– درو میاشتو کې به هغې یوار د (س) له ښاره مسکو ته سفر کاوه. مېړه ته به ئې ویل، چې مسکو ته ځي او هلته د خپلي ښځینه مریضۍ د تداوۍ له پاره

له ښځو متخصیصو سره سلا مشوري کوي،– مېږه به ئې کله باور کاوه کله نه. مسکو ته په رسیدو سره به هغې په «سلوویانسکي» بازار کي په یوه هوټل کي کوټه نیوله او په هغه ګړی به ئې په ګوروف پسي د هوټل نفرخذمت ور استاوه. ګوروف به دې ته ورتلئ او په مسکو کي په دې کار هیڅوک نه ول خبر.

ګوروف دغه ډول دژمي په یوه سهار هغې ته ور روان وو (خبر وړونکي برایي لا ده ته پیغام راوړی وو خو دی په کورکي نه وو) له هغه سره لور هم روانه وه، ده غوښتل چي له هغې سره تر لېسې پوري هم ولاړ سي، لېسې هوټل ته د تللي لار په اوږدو کي موقعیت لاره. څپري څپري نمجنه واوره هم اوریده. ګوروف لورته ویل، چي اوس د هوا درجه مثبت درې ده، خو پر هغه سربیره واوره اوري،– خو دا ګرمه هوا یوازي د مځکي پر سر ده، د اتموسفیر په لوړو لایو کي بېخي بل ډول هوا ده.

پلاره ولي په ژمي کي تالنده نه وي؟

هغه په دې اړه هم توضیحات ورکړل. ګوروف خبري کولې او په دې اړه ئې فکر کاوه، چي دا دئ دی ملاقات ته روان دئ او یوه ژوندی اروا هم په دې نه پوهیږي، او امکان لري چي هیڅکله به هم پوه نه سي. ګورف دوه ژونده لرل: یو ئې ښکاره، چي ټولو لیدای سوای او په خبر ول. دا ژوند ئې په رشتیا، درواغو او خطاایستلو پوري تړلی وو، کټ مټ لکه د ده د اندیوالانو او شناخته وو په ډول. او بل ئې– په پټه روان ژوند. هغه ژوند چي له یو عجبو او تصادفي پیښو څخه جوړ وو. د دغه ژوند ټولي پیښي ده ته د اهمیت وړ، په زړه پوري، ارزښناکي او ضروري وې. له دې ژوند سره ده ډېر په صمیمیت برخورد کاوه، او په دې کي دی ډېر رښتین وو او ځان ئې نه خطا ایست. هغه څه چي د ده د ژوند هسته ئې جوړوله، د نورو له سترګو څخه پټ ول. حتی د ده ټوله درواغ، او هغه نقاب چي ده پر ځان غوړولئ وو، څو حقیقت ترلاندي پټ کړي، د مثال په ډول، لکه په بانک کي د هغه نوکري، په کلوب کي شرطونه، د هغه «تر ټولو پاته طایفه» او له مېر مني سره کلني جشنو ته تلل. دا ټولو ته ښکاره وه. د نورو د ژوند په اړه ئې د خپل ژوند په شان قضاوت کاوه. هغه څه چي ئې لیدل باور ئې نه په کاوه، او هر وخت ئې داسي انګېرل چي د هر چا رښتینی او په زړه پوري ژوند په پټه، لکه د شپې په تاریکه کي تیریږي. هر څوک خپله شخصي زنده ګي لکه د زړه راز پټ ساتي.

شاید همدا دلیل وي چي ځای ځای متمدن انسان په دې خاطر په لېونتوب سره کوښښ کوي، چي د شخصي راز احترام وساتل سي.

تر لیسې پوري د لور تر بدرګه کولو وروسته، ګوروف د«سلاویانسکي» بازار پر خوا روان سو. هغه خپل پوستین په اول منزل کي و ایست، او بیا لوړ وخوت، کرار ئې دروازه ور وټکوله. آناسرګیونا، په هغه خاکستري کالو کي وه چي د ده ډېر خوښ ول. ستومانه سفر او له تیري شپې راهیسي انتظار ډېره ستومانه کړې وه؛ د هغې د مخ بڼه الوتې وه، ده ته ئې کتل خندل ئې نه، په

هغه ګړي چي ګوروف تر چارچوب پښه ور واړوله د هغه په غېږه کي ئې خان ور واچاوه. د هغوی مچو ډېر دوام وکړ، لکه کال دوه چي ئې سره لیدلي نه ول.

ښه هلته ژوند څرنګه دئ؟- ده و پوښتل – کومه نوې خبره؟

صبر، اوس درته وایم... نه سم کولای چي خبري وکړم.

هغې د ژړا له لاسه نه سوای کولای چي خبري وکړي. له ده څخه ئې مخ واړاوه او سترګو ته ئې دستمال ټینګ ونیاوه.

ګورف په چورت کي پاته سو او له خان سره ئې وویل. «پرېږده چي وژاړي» زه به تر هغو کښېنم، او په کوچ کي کښېناست.

یو ګړی وروسته ګوروف د هوټل نفرخدمت ته تیلیفون وکړ، چي چای ورته راوړي؛ چای ئې و څښلې، خو آنا سرګیونا لا د ده تر شا کړکۍ خواته مخ اړولی ولاړه وه...

هغې له تشویش څخه ژړل او اوښکي ئې لاري لاري رواني وې، چي د دوی ژوند ولي دغسي غمجن دئ: یوازي پټ سره لیدلای سي، له خلکو څخه د غلو په شان پټیږي! آیا د دوی ژوند تباه سوی نه دئ؟

ګورف وویل: نو پرېږده نوري ساندي مه وایه!

ده ته دا ښکاره وه چي د دوی محبت داسي ژر پای ته نه رسیږي، او حتی پای نه لري. آنا سرګیونا ورځ تر بلي د ده په زړه کي ځای نیاوه او د هغې ستاینه ئې کوله، او دا به غیر بیهوده کار وي چي هغې ته مخ ور واړوي او ورته ووايي، چي د دوی روابط یوه ورځ نه یوه به پای ته رسي؛ او هغې به په دې خبري باور هم نه وای کړی.

دی ورنژدې سو او هغه ئې تر اوږو ونیوله، چي ناز ورکړي، او ټوکي ورسره وکړي. په دغه وخت کي ئې خان په هنداره کي ولید.

د ده ور ښېتانو نور سپینېدل پیل کړي ول او هغه ته دا عجبه ښکاره سوه چي په تیرو دوو کلونو کي څونده زوړ او ننېدلی دئ. پر هغو اوږو، چي د ده لاسونه پراته ول، ډېري ګرمي او لړزېدې. ده دا محسوسول چي د دې ژوند له پاره، چي تر اوسه هغسي تود او زړه وړونکی وو ډېر څه نه ول پاته چي داسي مړاوی او لټ سي لکه د ده چي دئ. د څه له پاره دی پر هغې باندي داسي ګران دئ؟ هغه هر وخت ښځو ته داسي نه ښکارېد. لکه دی چي په رښتیا وو، او پر هغو باندي دی په خپله نه، بلکي هغه نارینه ګران وو چي په خیال کي ئې جوړاوه او په خپل ټول ژوند کي ترې پسې ګرځېدې؛ او حتی هغه وخت چي به پر خپلو غلطیو باندي لا پوهیدې بیا به هم ور باندي ګران وو. مګر له هغوی څخه یوه ئې لا هم له ده سره خوشبخته نه وه. وخت تیرېدئ، هغه له ښځو سره معرفي کېدئ، ګرځېدئ، جلا کېدئ، خو یو وار هم نه وو مین سوئ، د دوی تر منځ هرڅه وه، خو مینه او محبت نه.

یوازي اوس، چي د هغه د سر ور ښېتان پر سپینېدو سول، په رښتیا ئې په خپل ژوند کي په اول وار زړه بایللی دئ.

آنا سرګیونا او دی یو له بله داسي سره

ګران ول، لکه ډېر نږدې دوستان، لکه سکه خلک، لکه مېږه او ماينه؛ دوی ته داسي څرګندېده، چي دا د دوی تقدير ټاکلی دئ چي يو له بل سره مينه ولري، او دوی ته دا روښانه نه وه، چي د څه له پاره هغه ماينه لري او دا مېږه؛ دا لکه هغه دوې نر او ماده مرغان چي يو ځای را الوتي وي او تر نيولو وروسته ئې په جلا جلا قفسونو کي ژوند کولو ته مجبوره کړي وي. هغوی د تير ژوند په خاطر چي ډېر شرم ئې څنې لاره، يو له بله په رشتيا بخښنه غوښتله، او احساس ئې کاوه چي دا مينه ده چي په دوی دواړو کي ئې بدلون راوستی دئ.

پخوا به، په غمجنو حالاتو کي، ده، د خپل ځان د تسلي له پاره په هر ډول دلايلو چي په فکر کي به ورګرځېدل، ځان ته قناعت ورکاوه، مګر اوس د هغه د تسلي وخت تيروو، هغه اوس ډېر عميق احساس کاوه، او زړه ئې غوښتل چي ډېر مخلص او ناز ورداره وي...

پرېږده، زما ګراني،- هغه وويل.- اوس دي نو ژړا نه دريږي بسته ډېر دي وژړل... اوس راځه خبري وکو، چي يوه د حل لاره ورته پيدا کو.

وروسته هغوی ډيري اوږدې سلا مشورې سره وکړې، پر دې باندي ئې خبري کولې، چي څرنګه کولای سي له دې د درواغو، پټ، خطاايستونکي، په دو جلاجلا ښارونو، او په کلونو کلونو نه ليدونکي ژوند او له دې ستومانوونکي لاري څخه ځانونه و باسي؟

څرنګه؟ څرنګه؟- هغه سر په دواړو لاسو نيولی وو او پوښتنه ئې کوله.- څرنګه؟

ګومان کيدئ، چي يو څه لا نوري خبري- نو د حل لاره به ورته پيداسي، او هغه وخت به نو نوی او ښايسته ژوند پيل سي؛ خو دواړو ته دا روښانه وه چي تر پايه پوري لا ډېر اوږد واټن پاته دئ او تر ټولو پېچلی او سخت ژوند اوس پيليږي.

پای

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- ځواني هم د شتمنی له پاره ښه وخت دئ هم د غريبی له پاره.
- تر جګړې وروسته دوته ډيموکراسي نه پاتېږي چي په ساتلو دي وارزي.
- حسادت له دې نه پرته بل شی نه دئ چي څوک د خوشحاله دښمن په وړاندي ځان يوازي احساس کړي.
- ښځه په انتقام اخستلو ډېره خوشحاله کېږي.
- زړېدل د ځوانی بايلل نه بلکي د فرصتونو او پياوړتيا بل پړاو دئ.
- که غواړې چي اټومي جګړه وګټې کوښښ وکړه چي هغه پيل نه سي.
- حقيقت وجود لري خو درواغ کشف کيږي.
- ځوانه وينه زوړ فرمان نه مني.

******

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادؤنه

(اتمه برخه)

**له عالَمه سره غم، نه غم**

**که**

**له عالَمه سره غم دوه غم**

پښتانه وایي: له عالَمه سره غم نه غم، خو موږ ته د عالَم غم، بل غم وزېږاوه. تفصیل یې په دې دردناکه واقعي کیسه کښې ولولئ:

د پاکستان د پردېسۍ روځې او شپې وې. له معمول سره سم به د غرمې د ډوډۍ دپاره د یوه همکار په دفتر کښې سره را غؤنډېدو. ډوډۍ په خوښۍ او خوشالۍ سره وخوړل سوه. د تریخوالي او خواشینۍ هیڅ اثر نه ښکارېدئ. تر سترخان ټولولو وروسته له اندېوالانو څخه چا د هغه دردناکي پېښې خبر و وایه، چې سهار یې کار ته د را تلو پر مهال له یوه افغان همکار څخه د فابریکې په سروېس کښې اروېدلئ ؤ. خبر دا ؤ، چې یوه افغانه، غالباً پښتنه مېرمن، په سپینه روځ د کراچۍ په ګلشن اقبال کښې د پلازا د څؤکیدار له خوا تښتول سوې؛ او بېله ځنده د پاکستان و بل سر یاني د سوات و شاوخوا سیمو ته بېول سوې ده. د ډوډۍ او لمانځه تر یو ساعته وقفې وروسته ټول همکاران له یوه عالم درد او اندېښنو سره و خپلو مربوطو دفترو ته ولاړو. کله چې مي د خپل ډېپارټمینټ له همکارانو څخه د موضوع په اړه پوښتنه وکړه، ښکارېده چې زیاتره سهار وختي لا په هر څه غوږېدلي وه.

– چا ویل شاید په زور او تهدید یې بېولې یي.

– چا ویل کېدای سي د نشه یي موادو په کارولو سره یې تښتولې یي.

– چا د ښځې و کورنییو شخړو او اختلافاتو ته اشاره کوله.

– چا په ډېره دردمنه او قهرجنه لهجه و ویل: که مهاجر او بې وطنه نه وای ایله پاکستانیانو به څنګه جرأت کولای، چې د افغانانو و ننګ او ناموس ته په بده سترګه وګوري؟!

– چا ویل څؤکیدار هیڅ ګؤنا نه لري. که

ښځه نه وای ور سره جوړه، نو دا څنګه کېدای سوای، چې د پاکستان له دې سره یې تر هغه سره بوزي؟ مخسد یې دا ؤ، چې د کراچۍ - پېښور په اوږده لار کښې د پولیسو او پوځیانو خورا ډېرې پوستې دي؛ او په هره پوسته کښې د شکمنو مساپرو پوښتنه ګروېږنه کېږي.

لنډه دا چې هر چا له خپل دید او فکري جوړښت سره سم څه تبصره یا کنایه و ویله، چې ځینو یې د خواخوږۍ او غمشریکۍ او ځینو یې د ناپوهۍ او بې دردۍ خټه لرله.

خدای شاهد دئ، زه خپله د دې غمجنې پېښې په اروېدو سره دؤنه زړه ماتی او خواشینی سوم، چې د نورو روځو پر خلاف مي په ډېره سختۍ روځ تېره کړه. تر رخصتۍ وروسته مي د څه باندي یو ساعته لارې په اوږدو کښې هم ټول هوښ او حواس په دې دردناکه پېښه بوخت وه. په دغو غمجنو سوچو او چۆرتو کښې و کور ته و رسېدم. مېرمنې مي له معمول سره سم د چایو پتنوس راوئ؛ په څو شېبو کښې مي لوښي هم را و رسېدلې.

همېشه به د مازیګر پر چایو د پلازا او مکتب د روځنیو مهمو پېښو په باره کښې زموږ مفصلې خبرې اترې کېدلې. کله به د پلازا د اوبو یا برق د پرچوۍ، کله به د چټلۍ او ناپاکۍ، کله به د کوچنیانو د مکتب د څه په زړه پۆرې مسألې او کله به د غره یا د وره څه نورې نوي یا زړې تبصرې کېدې؛ او په دې ترتیب به د پردېسۍ، کار او روزګار غمونه غلطېدل. په دغه روځ مي د پلازا په اړه نه د مېرمنې و روځنې راپور ته انتظار کولای سوای؛ او نه هم د لوڼو د درس او مکتب و کیسو ته. هر څۆنه چې مي ځان ته د چپتیا او ناګارۍ سلا ورکوله، زړه هیڅ نه را سره منله. له ناچاریيه مي د زړه غوټه خلاصه کړه؛ او د افغان مېرمنې د تښتولو تریخ خبر مي د ټولو په منځ کښې و وایه. ښایي هیڅکله مي تصور نه کاوه یا تصور نه سوای کولای، چې د یوه ناشناخته وطندار د درد و غم خبر به زموږ پر حساسې او عاطفې کورنۍ اسماني ټکې غوندې را پرېوزي؛ او مشر و کشر به هفتې و چارشنبې د ویر او ماتم په ټال ور سره ځنګیږي.

د ښځې تښتول په پښتنې دود او دستور کښې ډېره شرمناکه او بدمرغه پېښه ګڼل کیږي؛ خو دلته نه یوازې د یوې مرۆښې ښځې د تښتولو یا تښتېدو، بلکې د یوې پښتنې کورنۍ د مشر او کشر د عزت خبره هم نغښتې وه. تښتول سوې ښځه د چا مېرمن، د چا مږور، د چا مور، د چا خور او د چا بل څه وه. په حقیقت کښې خبره یوازې د دې تښتول سوې افغان مېرمنې نه وه، چې د هر پتمن افغان د غیرت احساسات یې پارولې وه، بلکې لکونو نورو افغان مهاجرو هم د دې ښار په ښلابښلو برخو کښې د مهاجرت او بې وطنۍ شپې و روځې تېرولې، چې د دې لویې بې پتۍ سوځۆنکې درد یې په ټول اروا او وجود احساسولای سوای. البته دا خبره باید له یاده و نباسو، چې په کراچې کښې د افغان مېرمنو تښتول څه چې ازارول هم بېخې نوې او نااشنا خبره وه. د حکومتي چارواکو، په تېره بیا پولیسو، غلو او ډاکوګانو د رنګارنګ شکوَنو او لوټونو خبرې مو ډېرې اروېدلې وې، خو د

افغان مهرمنو و شرف او عزت ته چا هيڅکله په بده سترګه نه وه کتلي.

څو روځي په تشو تبصرو او ويش و واخ تېري سوې. هيڅا د دې پېچلي او ستونزمني غوټې د خلاصولو څه مؤثره لار نه لرله. که څه هم د فابريکې ځينو بادردو او بااحساسو همکارانو د يو و نيم مخورو افغانانو د جرګه کېدو او پاکستاني پوليسو يا نورو حکومتي مقاماتو ته د احتجاج او شکايت کولو خبره وکړه: خو چا به د پردېسۍ او بېوسۍ په داسي شرايطو کښي و دې نېک نظر ته د عمل جامه ور اغوستې وای؟ ما ته خو د افغان مهاجرو، په تېره بيا بدمرغو پښتنو په منځ کښي داسي څوک نه ښکارېدئ، چي د خپلو مهاجرو خوندو او ورونو د پت او عزت په خاطر يې د پاکستاني حکومت دروازې ټکولي وای. علت روښانه ؤ. د نؤم او نښان، پيسو او کارخانو خاوندانو يوازې د خپلو ګټو وټو فکر کاوه: او موړ غؤندي بېوسو او بېکسو مهاجرو د «شوله ايت بخور و پرده ايته بکو » په دود يوازې له خپله سره اوروژئ.

خير، هره روځ له کار څخه و کور ته تر راستنېدو وروسته لومړنۍ پوښتنه د تېښتول سوي افغان مېرمني د پيدا کېدو په اړه وه. شک نسته چي دې زړه دردؤنکي حادثې د هر بادرده انسان (څه پاکستاني، څه افغان څه بل چا) په زړه او روح اور لګاوه، خو زموږ د کورنۍ، په تېره بيا زما د مېرمني پر سپېڅلو عواطفو يې تر هر چا ژور اثر و ښانده. ما ليدل چي تر دې بدمرغي پېښي وروسته به د شپې تر ناوخته په لمونځو، دؤعاوو او زاريو بوخته وه. ښايي د دې ژور خپګان او عاطفي ګوزار مستقيمه يا غيرمستقيمه نتيجه وه، چي يو سهار له داسي ډارؤنکي ناجوړۍ سره را وېښه سوه، چي په ليدو سره يې زموږ ټولو زړونه مات سول؛ او ګرده کورنۍ څو هفتې په داسي روحي درد او عذاب اخته وو، چي د تېښتول سوي افغان مېرمني سوز او سوی مو له زړو او مغزو څخه والوت.

دا ويرجنه پېښه زما د خوږې مېرمني د وجهي فلج ناروغي وه، چي اسماني ټکي غؤندي را پرېوته. هغه روځ ما د سر په سترګو وليدل (په خبرو او کتابو کښي خو مي پخوا هم اروېدلي او ليدلي وه)، چي د کور مېرمن په رشتيا سره د کور څراغ، د کور ستؤن او د کور پريشته ده. چا تحمل کولای سوای، چي ګُل غؤندي ښکلي او تر و تازه انسان دي نابېره په داسي درد او رنځ اخته سي، چي نه خوله ښورولای سي او نه سترګه ترلای سي.

سمدلاسه د پلازا و ښځينه ډاکټري ته ولاړوو، هغې له خپلي پوهي او تجربې سره سم اوږده پرپړه وليکله، چي په چټکۍ سره مو ورته شرو (شروع) کړه. يوه – دوې روځي مو وکتل، خو د دوا هيڅ اغېزه نه ښکارېدله. دا پلا مو ماښامي مهال د دغې ښځينه ډاکټري و خاوند، ډاکټر صديقي، ته مراجعه وکړه، چي د روځي له خوا د ښار په يوه روغتون کښي په کار اخته ؤ، خو په ځينو استثنايي حالاتو کښې د مازيګر له خوا د خپلي مېرمني ځيني مهم ناروغان هم کتل. ډاکټر صديقي هر څه په غَوَر او دقت وکتل؛ او تر مېرمني يې هم غټه نؤخسه وکښله. چي ځيني دواوي يې حتا د

پلازا په دوو- درو درملتونو کښې هم نه ومؤندل سوې. د مریضۍ و حساسیت ته په پام کولو سره مو پاته دواوې په هغه ګړي، څو کیلو میتره لیرې، له یوې بلې لویې دواخانې څخه تر لاسه کړې.

په ډېرې خواشینۍ سره ډاکټر صدیقي هم پر خپل همېشني دقت سربېره غلط تشخیص کړئ ؤ؛ څکه لږ و ډېر یوه هفته تېره سوه، خو د ناجوړۍ د ښه کېدو هیڅ اثر نه ښکارېدئ. د هرې روځې په تېرېدو سره د ټولي کورنۍ، په تېره بیا کوچنیانو په تنکیو څېرو کښې د مړاویتوب نخښې را برسېره کېدلې. سره له دې هم هیچا ونامېندۍ ته لار نه ور کوله. رنځوري مېرمني مې د پخوا په شان د شپو تر ناوخته و خپلو دؤعاوو او نفواتو ته ادامه ورکوله. ښایي اوس یې نو عبادت او دعاوې د ټېنتول سوي افغان مېرمني پر ځای د ځان د عافیت او سلامتۍ په خاطر وې. لورکۍ مې په خپل نوبت یا ښایي د همزولو او شریکانو په سلا او مشوره د پلازا د ماجیت له مولوي صاب څخه غوښتنه کړې وه، چې د جمعې د لمانځه له ټولو برخه والو څخه یې د مور د سمدستي شفا او سلامتۍ دپاره دؤعا وکي. ما په خپله هم د دؤعاوو او نفواتو تر څنګ د ډاکټرانو او دواوو لمن پر ینښوولَه. که څه هم ډاکټر صدیقي د پینځلسو روځو نؤخسه راکړې وه؛ او د ګردو دواوو د بشپړېدو سپارښتنه یې کړې وه، خو زما په زړَه کښې د نور انتظار هیڅ زغم نه ؤ. په دې چې ډاکټر صدیقي له ورایه غلطه لار اخیستې وه. له دې سَوَبه نو زړَه هیڅ سلا نه را کوله، چې غلط تشخیص او بې ګټې دوا تې یوه بله هفته هم صبر وکم. زما خو پخوا لا په دې خبره سر خلاص ؤ، چې سړی باید هیڅکله پر هغه لار قدم وانخلي، چې کږوالی یې د سر په سترګو مالومیږي. دقیقاً دغه وجه وه، چې څو کاله مخکې مې د مهاجرت و ترخه خو خپلواک ژوند ته غاړه ایښې وه. ډاکټر صدیقي ته مې د ناروغ او دوا ټول جریان و وایه. هغه هم په خواشینۍ سره و منله، چې تشخیص سم او دقیق نه دئ. وروسته مې د یو بل متخصص پوښتنه ځني وکړه. سمدستي یې د کراچۍ په یوه دولتي روغتون کښې د خپلو دوستانو او شناختګانو له ډلې څخه پر یوه متخصص کوچنکي خط را کئ. سبا سهار د هغه متخصص د لیدو په هیله و روغتون ته ورغلو. ډاکټر رفیق صاب په ډېرې توجه او خواخوږۍ هر څه تر نظر تېر کړل. وروسته یې مخه را واړاوه:

– خان صاب د پرېشانۍ هیڅ خبره نسته. دا بیماري ډېر وجوهات لري، چې په هغو کښې عصبي شاک، د بېلابېلو دواوو ناوړه اغېزې او داسې نور راځي. فېشل پَرالسیس فقط یوه دوا لري، چې هغه دغه کوچنۍ ګولۍ دي. په شپدو کښې به د روځې شل دانې، وروسته به اتلس، شپاړس، څورلس، دولس، لس او په ترتیب سره دوې دوې ګولۍ کمي ورکئ، تر څو چې ټوله دوا ختمه سي. انشاء الله د دوا تر ختمېدو پؤرې به بیرته د ورځې، سترګي، خولې او مخ ټول عضلات و خپل پخواني حالت ته را وګرزي؛ او د بیمارۍ هیڅ نخښه به پاته نه سي؛ خو تر هغه مهاله چې دوا بشپړیږي باید متأثره سترګه په دؤسمال پټه

وساتي؛ او د خولې او مخ د سمېدو دپاره هم باید هغه تمرینونه په پوره دقت اجرا کې، چې دمخه مې یادونه وکړه. خان صاب او خور جانې تاسې دواړو ته اطمینان درکوم، چې د دې دوا تر بشپړېدو پورې به هر څه ټیک ټاک سي!

– ډېره ډېره مهرباني. الله دې دا مریضي ژر تر ژره جوړه کې، چې د ټولې کورنۍ خوښي او خوشالي یې اخیستې ده. کله چې د دې (د دوی) مړاوو او رنځبلو څېرو ته ګورم، زما وجود هم له غم او خپګانه لړزیږي.

– نه نه خان صاب! د فکر کولو او وارخطا کېدو هیڅ خبره نسته.

تر منني او کورودانې ویلو وروسته راووتو. تر هر څه مخکې مو له خرمه درملتون څخه تجویز سوې دوا واخیستله؛ او کور ته تر رسېدو وروسته مو سمدلاسه شرو کړه. تا به ویل و اسماني اپت ته اسماني شفا را ولېږل سوه. د نوي دوا تر استعمال فقط یوه روځ وروسته د ښه والي روښانه نخښې ولیدل سوې؛ او تر یوې هفتې دوا او مساژ وروسته دونه مثبت بدلون راغئ، چې هیڅا یې توقع نه کوله. لکه څنګه چې ډاکتر رفیق صاب اټکل کړئ ؤ، د دوا تر بشپړېدو پورې د ناجوړۍ کمبله پر مخ ټوله سوه؛ او زموږ د کور په سړه او تاریکه فضا کښې یو پلا بیا د میني او خوښۍ پلوشې خپرې سوې. شکرونه مو وکښل، چې خدای تعالی دا سخت او دردناک ازمایښت په خیر تېر کئ. ډاکتر رفیق او د هغه خېل و تبر ته مو هم دونه ډېري او اخلاصمنې دوعاوې وکړې، چې د ژوند تر پایه یې بس دي. کله

چې مې د ډاکتر رفیق پوهه، خواخوږي. احترام او انساني چلن ولیدئ، سمدستي مې د کابل په علي آباد روغتون کښې د پوهاند ډاکتر عبدالحمید رحیمي یاد په زړه کښې تازه سو. پوهاند رحیمي، چې په طب پوهنځی، علي آباد روغتون او زیاترو مریضانو کښې د «مولانا» په نامه یادېدئ، د انسانیت، شرافت او ریښتیني طبابت ډېر لوړ مثال ؤ. پاکستان تر مهاجرت ښایسته ډېر کلونه مخکې، دغه سپېڅلي او نوراني «مولانا» په خپل حاذقانه تشخیص او تداوي سره د شغلې ژوند و ژغورئ. که به د ژوند پر مېنه یې. لوی څښتن دې و دې دواړو شفابخښونکو طبیبانو او لوړو انسانانو ته په صحت او سلامتۍ کښې اوږد ژوند ورکي.

زموږ د کورنۍ ناجوړۍ تر جوړېدو دوې- درې هفتې وروسته مې یوه روځ په دفتر کښې د کار پر مهال له یوه همکار، شفیق جان، څخه واروېدل، چې د څنګ و بل همکار، صادق جان، تې په نسبتاً کرار ږغ وویل:

– بیر ته یې راوستلې ده.

– څوک یې بیر ته راوستې ده؟

دوه- درې ګامه آخوا د ډیپارټمینټ یوه معمره همکار، عبدالعلي خان، ور ږغ کړه.

– هغه افغانه ښځه، چې څه مؤده دمخه د پلازا چوکیدار د سوات و خواوو ته تښتولې وه. شفیق جان په غمجن او متین اواز ور غبرګه کړه.

ښایي د دفتر انډیوالانو زموږ د کورنۍ مریضۍ په وجه نه غوښتل هر څه په عامه بیان

کي؛ څکه داسي انګېرل کېده چي زموږ د کور ناروغي هم د دغې بدمرغي او کرغېړني حادثې تر سیوري لاندي پېښه سوه.

– ښه ښه کیسه وکه څنګه یې راوسته؟ ما په داسي حال کښې، چي د شعبې تقریباً ټولو لسو همکارانو په غور غوږ نیولئ ؤ، ور ږغ کړه.

– هارون جانه!

– نن په سروېس کښې د پېکینګ [پکینګ] ډیپارټ [ډیپارټمینټ] یوه ګاریګر کیسه کوله، چي د ښځي خپلوان له ډېره وخته د خپلي ښځي او چؤکیدار د پیدا کولو په خاطر و سوات ته تللي وه. شفیق جان په لوړ اواز را غبرګه کړه.

– عجبه ده چي څنګه یې پیدا کړې ده؟

– شاید دلته بې په پلازا کښې د چؤکیدار پته مته پیدا کړې یي. یا بې هورې په سوات کښې پوښتنه پر پوښتنه ادرس پیدا کړئ یي. په نور جریان یې نه یم خبر.

– د پېکینګ ډیپارټ ګاریګر نور څه کیسه کوله؟ د شعبې څینو همکارانو په تلوسې ور ناره کړه.

– ول (ویل یې) ښځي تې د پېښوریانو په رقم کالي ور اغوستي وه؛ او په پزه یې د سرو یا سپینو زرو پېزوان ور ځړولئ ؤ.

– چؤکیدار تې څه و نه ویل؟ د شعبې یو بل ملګري، طارق، په تعجب او اندېښنې سره پوښتنه وکړه.

– چؤکیدار دګه خو په لاس نه ؤ ورغلئ. که نې خو خامخا بې څه ورته ویل. شفیق په نسبتاً عصباني لهجه ور غبرګه کړه.

– دا و وایه چي خپلوانو له ښځي سره څه ماملـه (معامله) وکړه؟ د شعبې یو بل همکار په درانه او کښته ږغ پوښتنه وکړه.

– دا پوښتنه ولا ما هم څني وکړه. ده ویل د ښځي مېړه و ټولو خپلوانو او شناختګانو ته ویلي دي، چي ماینه مي پریشتې غوندي پاکه ده. کله چي کراچي ته را رسېدلي دي، سمدلاسه یې لوی خیرات کړئ دئ.

– د خدای لوی احسان دئ، چي دا دردونکې قضیه په خیر او کرارۍ سره حل سوه. عبدالعلي خان او ما په ګډه جواب ور کئ.

– دا وخت د څنګ دوو همکارانو په خپلو منځو کښې د پؤس پؤس په ښه خبري کولې.

د شعبې بل منور او پوه همکار، داؤد خان، په تؤنده اودردمنه لهجه ټولو ته په خطاب کښې و ویل:

– چي مېړه او خپلوان پر خپله ښځه باور لري، نور خلګ څوک دي، چي په دې کورنۍ ماملـه کښې به خبري او تبصرې کیي؟!

د داؤدخان له دې معقول نظر سره د سوال او جواب لړۍ هم پای ته و رسېده. د قضیې د پتمن او سوله ییز حل له اسیته د ډیپارټمینټ د ټولو کارګرانو په څېرو کښې د خوښۍ او خوشالۍ احساس له ورایه څرګندؤ. ما هم مازیګر کور ته تر رسېدو وروسته سمدستي مېرمني او اولادو ته د تښتول سوي افغان مېرمني د بیرته پیدا کېدو او راوستو زېری و وایه، چي د ټولو له خوا یې په ډېره مینه او خوشالۍ هرکلي وسو. په دې ترتیب د خپل او پردې غم دردناک داستان پر دې ځای پای ته و رسېدئ.

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د عبدالظاهر څرک په نوم)

لسم لیک

۲۰۰۱/۷/۱٦م

ډېر ګران الحاج عبدالظاهر جانه!

السلام علیکم!

هیله ده چي روغ جوړ او خوشحاله اوسې د کورنۍ او دوستانو سره. کورنۍ او دوستانو ته به هم زموږ سلام او احترام ورسوې.

ډېر وخت وسو، د خط لیکلو فرصت مي نه دئ تر لاسه کړی. د هغه علت او دلیل به د موجود لیک په ترڅ کي ورالندي سي. خو دا هم له امکانه لیري نه بریښي چي موجوده لیک به تر یوه عادي او رواجي لیک اوږد سي. که چیري داسي وسي د اطناب له پاره به د اغماض غوښتنه پر وخت لا درځخه وکړم. د دې خبري د فهم سره چي زه به دا کار د تلافي ما قات له پاره کوم.

زما زوی عبدالهادي ستا د خط رارسېدو زېری راکړ. زموږ سترګي په تا روښي دي. د رشاد صاحب کندهار ته د رسېدلو، د هغه د مشر ورور د مړیني او د عبدالولي د سلامونو ویلو خبر دي هم لیکلی وو. د ټولو له پاره دي کور ودان. ځکه چي تا په تلیفون کي وویل چي شپې ته ټول د عبدالولي مېلمانه یو. ما درڅخه وغوښتل چي زموږ له لوري ټولو ته د سلامونو رسولو او رشاد صاحب او ملګرو ته ئې د فاتحې او ډاډګیرنې د وړاندي کولو وسیله سه. هیله ده چي دا غوښتنه دي منلې او دغه پیغامونه دي رسولي وي. که دي هېر سوي وي ستا بلا دي واخلي.

تر ۱۲ کلو وروسته د خپلو موټرانو په سپار کي کابل ته ولاړاست او ساعت مو ښه تېر سو، د کابل هوا ډېره ښه وه.

ساعت تېری مو نوش جان، هره کله دي در په برخه وي. اما د کابل هوا نو د تاریخ په شهادت تقریباً هر کله ښه وه. دغه دلیل دئ چي ظهیرالدین محمد بابر وصیت وکړ چي پسله مرګه ئې مړی په کابل کي ښخ کړي. ځکه هغه په خپله لویه پاچهي کي تر هر ځای د کابل د چهاردهي هوا او فضا خوښول اما اوس ئو هوا؟

له نېکه مرغه هوا داسي شی ده چي د څه خرابېدو احتمال ئې سته اما له منځه ئې څوک نه سي وړای که داسي نه وای د کیها به لا یوه تنظیم لاس تر ایستلی وای د خان کړې به ئې

وای او په یو څو خوشمرو به ئې چیري لیلام کړې وای. تر هوا چې راتېر سو، نو کابل خو به دي هم د سر په سترګو لیدلی وي؟

وايي چې مشهور شاعر خاقاني د حج د ادا کولو په اراده مخ پر بيت الله شريف روان سو، کله چې قادسيې ته راورسېدی او هلته ئې د مدائن طاق وران سوی وليدی (ما دغه ځای چې د ايران او عراق پر وېش پروت دئ ليدلی دئ څو خښتې ئې لوېدلې او رواقونو ئې لږ درزونه کړي دي چې زر کاله پخوا د خاقاني په زمانه کې به دا ورانی دغه اندازه هم نه وو)، شيشک او طاق ئې د بست د رواق (کلابست) سره شباهت لري خو هغه يعني د مدائن طاق ډېر لوی دئ.

خاقاني د دغه وراني تر اغېزې لاندې يوه مشهوره قصيده وويله او دغه عمل ئې وغانده، د هغې قصيدې لومړی مصراع دغه ده:

هان ای دل عبرت بين از ديده نظر کن هان

قصيده ډېره مشهوره ده او پر خاقاني قومي احساساتو داسې غلبه وکړه چې له خپل مقدس سفره هم په تاثر منصرف سو.

د قادسيې غزا د حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت کې سوې ده او د هغه حضرت سره د شيعه ګانو د مخالفت په باطني دلايلو کې يو هم دغه شی دئ.

خبره د کابل د سياحت او هوا څخه راواړه سوه. تا خو به نو د کابل وراني ويجاړي هم زموږ د کور په شمول د سر په سترګو ليدلي وي، د مځکې پر مخ وراني ويجاړي خو لا د سر په سترګو ليدل کېدای سي، د معنويت وراني او د مځکې د تل خرابۍ چې تر ظاهري ويرانۍ په سلو واره زياتي دي د زړه سترګې غواړي، سړی نه پوهېږي چې خاقاني ملامت کړي که نه؟ او که ئې ملامت کړي تر کومه حده؟ آيا مکان ملامت دئ که مکين؟ که و دغه تفصيل ته ورکښېوزم بيرته راوتل به راته ګران سي. خصوصاً سالم راوتل به راته ناممکن سي. پر دغه مختصره اشاره به اکتفا وکړم، د کابل ښه هوا دي جاري وي او ستاسي ساعت تېری دي باقي وي.

زما په کور کې چې څوک مېشت دي زه ئې نه پېژنم او نه هم په خبر يم. ممکن فقط د سرپناه استفاده ئې ځنې کړې وي. يا به چا په کراهيه ورکړی وي. په هر صورت تر هغه چې تور ولاړ وي دغه ډول استفاده ورځخه کول بد نه دي. که څه هم شرعاً به ئې سوء استفاده بولي. ځکه که تور پاته سي د مسلمانانو لاس نه ورته درېږي يو به ئې خښتې وړي بل دروازې او بالاخره به ئې ډېري هم نه وي پاته او څوک به ګټه هم نه سي ځنې اخيستلای او دغه مثالونه نو موږ په تېرو شل پنځه ويشتو کلونو کې په شل شلکو وليدل د دغې خبرې له پاره دغه څېړنه کافي ګڼم اما نور نو!

د طارق په لاس چې دي هر څه رالېږلي دي هغه رارسېدلي دي خدای تعالی دي ودان او آبات لره. خو دا چې ما تا ته قسمي اطمينان درکړی دئ د هغه له پاره ما وبخښه. خو ځکه چې ما ته هم دغه ډول قسمي او نامرتب خبر راکول سوی وو. ما هم غير له دغه بل ډول اطمينان نه سوای درکولای. د طارق جان او امثالو په نظر دغه وړې خبري ځکه ثانوي اهميت لري چې دوی ځانته فرهنګي مشغولا غوره کړې وي او دغه مطالب فرعي ورته ښکاري.

تاليس د يونان مشهور فيلسوف پر لاري روان وو د آسمان ستوري ئې په دوربين کې لټول

او په ځاه کي ولوېدی. جناب مولانا ممکن دغه حال په نظر کي نیولی وو چي دا شعر ئې وواېه:

تو کار زمین را نیکو ساختی
که باآسمان نیز پرداختی

طارق د کندهار تر سفر وروسته پر ۸/ ۲/ ۲۰۰۱ زما لیدو ته راغی، ستا خط ئې راووړ او وئې ویل چي د ترتېزکو تخم ئې هم راکړی دئ.

ما دغه مطلب په ٦٢ خط کي درته نوشته کړ، ځکه معلومات مي تر دغه حده پوري محدود وه، وروسته نو طارق جان په غونډو او کنفرانسو کي ډوب سو. یو دوې میاشتي وروسته چي موږ د دوی کور ته ورغلي وو ستا رالېږلی قلم ئې راکړ دا چي تا په خپل موجود لیک کي کښلي دي، چي: ما خو یوازي د ترتېزکو تخم نه وو ورکړی بلکي نور تخمونه هم ورسره وه او پر هغه سربېره مي یوه جوړه د ډېرو تسبیح، یو قلم او د فریدې له پاره د کالو ټوکر ورکړی وو، چي یادول ئې ښه کار نه دئ.

ما له فریدې ځخه پوښتنه وکړه، هغې ویل ټوکر ما ته پر وخت رارسېدلی دئ، ډېر په زړه پوري ټوکر دئ زما د زړه له کومي د تشکر او مننې مراتب او د کور ودانې عرض محترم ورور ظاهرجان ته ورسوه او ستا له پاره ئې تسبیح هم ورکړي دي هغه د طارق ځخه دي، کله چي راسي در به ئې کړي، د دواړو اطمینان حاجي ظاهرجان ته ورکه (دا وخت طارق جان سویډن ته په یوه غونډه کي د اشتراک له پاره تللی وو) او تسبیح ئې پر ۲۰/ ٦/ ۲۰۰۱ د دوی په کور کي یعني پنځه میاشتي وروسته راکړې.

خو دا چي ته وایې یادول ئې ښه نه دي، په مسلماني کي خو اصل: لا تبطلوا صدقاتکم بالمن و الاذی. اصلاً منت اچول او اذیت ورکول ښه نه دي. دا نو د عام تذکر سره توپیر لري او اصلاً دغه تحفې او هبې د صدقې تر حکم هم نه لاندي کېږي او د هغو حکم او خاصیت بېل دئ. تهادوا تحابوا! په داسي حال کي چي تر هدیې او هبې وړاندي هغونه راباندي ګران یې چي تحفه او سوغات دي هغه اندازه نوره نه سي زیاتولای.

اوس به نو د یادولو هغه شکل چي من او اذی پکښي نه وي او فقط د توضیح او تبیین په غرض وي یو لازم امر دئ چي اهمال ئې بد عواقب پیدا کوي او غلط فهمي راولي او موجود حال د دې خبري شاهدي ورکوي یاد کړم. ځکه نو که زما منې "هر چا ته باید ځرګنده او له هر ډول ابهام پرته ولیکې او په دغه کي هیڅ عیب هم نسته نور نو فیصله کاملاً په تا اړه لري" اوس به نو ځو خبري د ځان په باب ولیکم:

۱/ پښتانه وایي: چي په ځان کي ئېویني په جهان کي ئې ویني. دغه اصل په فلسفه کي قیاس به نفس بولي. زه د کورنۍ کرهنې په خاص صورت او د عام زراعت په عمومي توګه لېوال یم. ځکه مي د ترتېزکو، مولیو او کاهوګانو او نورو تخمونه فرمایش نه د ځان له پاره، بلکي د دوی – اولادو له پاره – درکړ. ځکه زه خو تر اوسه کور هم نه لرم. دوی ښه دي کورونه لري او کورونه ئې د ځمکي پر مخ دي او ځانونه په دغه شریف او انساني مصروفیت مصروفولای هم سي. د کوم په نتیجه کي چي خوندوري ترکارۍ او سلاتې وخوړلای سي هم به ئې له هیواده سره اړېکي ټینګ پاته وي. خو دلته خبره هغه ډول نه سوه.

فریده په خپل طبابت مصروفه ده. ستړې ده. د ځان او اولادو له پاره شومه برابروي تر دوو میاشتو پوري تخمونه ځني ورک وه، کله چي بیا په ګوتو ورغله ځو ځله مي د کرلو له پاره ورته وویل لکه چي اوره ئې نه ورته ولګېده. ما هم پر

خپل حال پرېښووله او نوره مې و نه غمول. طارق جان په نورو خبرو مصروف دئ اصلاً لا د دې کار ذوق هم نه لري. ستا له رالېږني څخه مننه او ما دغه زحمت د قياس به نفس پر مبنى درکړ او هغه سم و نه خوت، خير داسې هم کېږي.

۲/ تا ډېر ښکلی او روند قلم رالېږلی وو. له پېرزويني څخه دې مننه. خو داسې ښکاري چې زما د خط کيفيت دې په نظر کې نه وو نيولی خپله لورېينه دې ښکاره کړېده د هغه له پاره هم تشکر خو دغه تاريخي پښتني تجربه دې هم بايد له زړه ايستلې نه واى چې وايي: "وګوره سړی تر لاندي واچوه کالی". د قلم د بخشش سره د قلمزن د خط او کتابت سطح هم بايد په نظر کې ولرې. په دغه حساب زه خپله سويه تر خودکار قلم لوړه نه سم بېولای تا چې خودرنګ رالېږلی دئ ستا دې رنګ په هر محفل کې ښه وي.

۳/ اما تسبيح: خدای تعالی دې د شيخ صاحب ځای په جنت کې ارت لري، يو وخت د هغه باجه ملا خيرمحمد بارکزي چې اصلاً په خپله او د کورنۍ په اعتبار حکاک وو ده او کورنۍ ئې د دغه کار مهارت او تجارت درلود. يوه جوړه د تنګ غارو د شفافي او ښې ډبري تسبيح وربخښلې وې. د مرحوم شيخ صاحب له پاره د تعجب او حيرت ځای دئ چې ولي ئې زما پټوخ ذوق او د نفيسو تسبيحو د ارزيابۍ کم استعداد په نظر کې نه وو نيولی تسبيح ئې ما ته په لاس راکړې چې ويې ګورم او د څرنګوالي قضاوت ئې وکړم.

ما ته چې تسبيح په لاس راغلې منځ ته مې ګوته ورواچول او داسې مې څرخولې لکه فښتني ځوانانو چې به واړه ځنځيرونه پر ګوته څرخول. په دغه حال کې به يو او نيم وار زما د کار د مېز پر سر هم ونښتې. دا بېره هم وه چې د تجورۍ سره ولګېږي. که هغسې سوي واى نو به ډېره بده وه.

مرحوم شيخ صاحب چې دا حال وليد فوراً ئې تسبيح زما له لاسه وايستې او راته ويې ويل چې د دغه ډول نفيس جنس سره دغه ډول شډل چلند په کار نه دئ.

که چيري ما پخوا تا ته دا قصه ليکلې واى ممکن تا به د دغه قيمتي تحفې په رالېږلو کې تجديد کړی واى.

يو بل وخت يو بل چا - چې ستا سره ئې نه شباهت وي نه مقارنت - چې په شېرزايي مشهور وو په منحل رژيم کې ئې هم سوداګري کوله په منحط رژيم کې هم حتی چې په بعدي او اوسني رژيم کې هم سوداګر پاته سوی وو. زما سره په يوه سفر کې قزاقستان ته ملګری وو. هغه هم په اصرار او ټينګار يوه جوړه د ډبري تسبيح راکړې هغه مې ژر له لاسه ليري کړې چې راڅخه ورانې نه سي. د شيخ صاحب مرحوم نصيحت مې هم هغه وخت و سترګو ته جګ ولاړ وو هم اوس.

اوس نو زه مجبوره يم ستا رالېږلې تسبيح ستا د لاس د نخښې په شکل وساتم ستا څخه مننه وکړم او له پرله پسې استعمال څخه ئې ليري وساتم. خو زما خپل صلاحيت لږ دئ. د فريدې د کالو د ټوکره له پاره زه فقط د هغې د امتنان او تشکر د انتقال له پاره وسيله کېږم. د هغې د کور ودانې د اظهار مراتب درته وړاندې کوم.

بله خبره چې تا په خپل مکتوب کې ورته اشاره کړې ده هغه دا ده چې بڅرکي په خپل ليکلې کتاب (وينې زلميان) کې د حکومت مداخلې د اتمې دورې په انتخاباتو کې يادې کړې او دغه ته ئې ګوته نيولې ده چې ګويا هغه

وخت کي هغه مداخلې د شيخ صاحب مرحوم په ګټه او د رشاد صاحب په تاوان سوي دي.

تا زما څخه د هغه وخت د جرياناتو د مشاهد په توګه معلومات غوښتي دي او ليکلي دي دي چي غبار په خپل کتاب (افغانستان در مسير تاريخ) په دوهم ټوک او پس مرګي چاپ کي هم و دغه مطلب ته اشاره کړې ده. دا دي هم کښلي دي چي که زه د بحرکي په ترديد کي څه وليکم. زه به په دغه مورد کي خبره له دې ځايه راپيل کړم چي:

د انساني ټولني تر ټولو لويه لاسته راوړنه دموکراسي (د خلګو د خوښي حکومت) دئ. دا سيستم تر ټولو هغو سيستمونو چي انسانان په تاريخ کي ورسره مخامخ دي، لکه مطلقه او بې قيده آزادي (د زنګله اصوله حکومت زور بالای زور)، شخصي استبدادي حکومت (کوم چي په افغانستان کي ډېر چلېدلی دئ)، د مسلک په نامه استبداد (لکه مذهبي استبداد، کمونيزم، د قوم په نامه د قومي تفوق حکومت او فاشيزم) او نورو دموکراسي تر معقول او د دې زمانې د انسان و طبيعت ته ورنژدې سيستم دئ.

کله خلګ د ټولني سکوت د خلګو په رضائيت ترجمه کوي. خو تسليم او سکوت د کامل سريت د رعايت سره په متناوب صورت د خپلو نماينده ګانو د انتخاب له لاري ښکاره سي. که دا ډول نه وسي نور هر شکل چي وي رژيم ئې د خلګو د نماينده ګۍ ادعا نه سي کولای او که چيري ادعا هم وکړي هغه به د منلو نه وي.

دموکراسي د خپل اهميت سره څه آسانه عمل نه دئ او په يوه وار ئې ابتدايي جوامع نه سي زغملای. د علم او فهم خاصه سويه، د غنی او مرښت يو مشخص حد، د خلګو د نظر يوه اندازه ارتقاء او د مقابل د نظر د تحمل صلاحيت او پراخ دلي غواړي او دا لومړني شرايط په جادو نه سره يو ځای کېږي نه په حکم او فرمان برابرېږي. نه د يوه فرد په اراده، که څه هم مخلص حاکم وي سره رسېږي، بلکي د فوقاني ارادي او اخلاص سره اوسني او تحتاني توافق ته هم اړتيا لري.

د دغو ټولو شرايطو د يو ځای کېدو سره قانوني ضمانتونه هم غواړي او عادلانه معيارونه هم بايد د بغاوتونو د کنټرول په منظور وضع سي، له هغې جملې څخه:

۱/ لومړی تضمين د يوه ديموکراتيک اساسي قانون موجوديت دئ چي د خلګو د منتخبو نماينده ګانو په خوښه منځته راغلی وي. دا ډول اساسي قانون بايد په صراحت دا څرګنده کړي چي په هيواد کي ټول واقعي واک اختيار د هيواد په بالغو اتباعو د واک اختيار په اصلي مالکانو اړه لري. حکومتونه له پورته څخه نه راځي، بلکي د خلګو د خوښو کړو نماينده ګانو له جملې څخه يا د هغو په خوښه د يوه مشخص او ټاکلي وخت له پاره درول کېږي. نه ابدي وي نه ميراثي او نه مطلق بلکي و پارلمان ته د قانون په رعايت، اجراآتو او مصارفو کي مسئول وي.

اساسي قانون بايد د دولت مرکبه قواء، لکه اجرائيه، تقنينه او قضائيه سره بېل کړي وي او عدليه قوه په خپلو اجراآتو کي غير له قانون څخه د بل قدرت په اطاعت مکلف نه وي. همدا شان د خلګو نماينده ګان په هر ارګان کي چي وي، ښاروالي، مرکزي شوری، محلي شوراوي ... هم بايد د دغه اصل چي سري او مستقل انتخابات بايد په ټاکلي وخت کي تر سره سي، تابع وي.

۲/ د انتخاباتو د اجراء له پاره او د مقدماتي شرایطو د راغونډولو له پاره لکه د رایي ورکوونکو د فهرستونو بشپړول، د مداخلاتو مختیوی ... د انتخاباتو موسسه باید نسبي آزادي ولري

۳/ پر پورته ذکر سوو خبرو سربېره باید د خلګو له پاره د نظر ځرګندولو په هره وسیله چي وي د ټولنو او احزابو جوړولو حقوق تضمین سوي وي. اصل مضمون ځکه چي د دموکراسۍ معرفي یا د هغه مزیتونه او ستونزي ښکاره کول نه دي، پر دغه اندازه به ئې بس کړم او ډېره به ئې نه اوږدوم. فقط دغه اشاره لازمه ګنم چي د دموکراسۍ د دوو پېړیو عمر سره بیا هم دغه سیستم لکه څه ډول چي د هغه له پاره تبلیغ کېږي په هغه اندازه ئې تحمل حتی په انګرېز او امریکا کي هم نسته. د دغي خبري له پاره د الجزایر د مسلمانانو د انتخاباتو برى او هغه په دیکتاتوري پر شا کول، یا په ترکیه کي هره ورځ یوه شبه اسلامي حزب منحلول په داسي حال کي چي پارلمان کي د خلګو منتخب نماینده ګان وي، بلکي کله کله اکثریت لا هم ولري. یا د سعودي عربستان او د هغه په شان نورو دیکتاتوري رژیمونو پر اعمالو سترګي پټول، او نور پوره شهادت ورکوي. یا مثلاً دا چي د هند د حکومت خپله دموکراسي تر نیمي پېړۍ زیات عمر لري او د انګرېز د زمانې تجربه ئې لا هم پر زیاته ده ویې ګوره چي په کشمیر کي دوی څه کوي او دنیا څه وایي.

۱/آیا د شاه محمودخان د حکومت ادعا د دموکراسۍ له پاره د منلو وړ ده؟ په کوم اساسي قانون په کوم پارلمان؟ د ده په کوم مسئولیت و پارلمان ته؟ د انتخاباتو قانون او د هغو د آزادۍ تضمین ئې چا کړی وو؟ خلګو څومره آمادګي، یا غوښتنه درلوده؟ د شاه محمودخان په تروم راغلي دموکراسي هغه چي له لازمو شرایطو پرته ئې په چف راوستلې وه په پف ئې له منځه یووړل. آیا دا نو دموکراسي سوه؟ او آیا دغو انتخاباتو ته سړی اصولي یا غیراصولي ویلای سي؟

د انتخاباتو پر ځای او په هغه وخت کي ئې غبار او محمودي په محبس دننه کړل او د ویښو زلمیانو خانان ئې بندیان کړل په کومه محکمه او محاکمه؟ په څه اتهام؟ او دوسیه؟ د دفاع له پاره ئې څه موقع ورکړه؟ بیا هم په دغه استبداد کي د دموکراسۍ او انتخاباتو د آزادۍ له بابته خبري کول جواز لري؟ دا نو په بې اودسه لمانځه کي د صفوفو سره کامل شباهت لري.

تر دغو مقدماتي خبرو وروسته به زه د انتخاباتو د جریان او د هغه و شا ته د جریان او دا چي شیخ صاحب څه ډول او ولي په انتخاباتو کي ودرول سو څه څه درته ولیکم. هیله ده چي ستا د پوښتني جواب سوی وي. انتخابات شروع سول، له هغه پرته چي د رایي ورکوونکو فهرس دي موجود وي. یا دي د انتخاباتو مستقله اداره موجوده وي. د انتخاباتو د قانون درک نه وو. انتخابات چي مهم اصل ئې سریت دئ هغه د تذکرو په رویت په یوه ښکاره دفتر کي ثبتېدل. شیخ صاحب او رشاد صاحب په خپله په صحنه کي حاضر وه. نورالحق خان به د هر چا تذکره واخیسته او پوښتنه به ئې څني وکړه: و چا ته رایه ورکوې؟ نورالحق خان البته چي د شیخ صاحب طرفدار وو. او دا رشتیا دي چي د رشاد صاحب له پاره رایه ورکوونکي نسبتاً ډېر راتلل ځکه یو خو دی یوه حزب ته منسوب وو او هغه له بازار او کوڅو ځخه خلګ ورته را استول. شیخ صاحب دغه امتیاز نه درلود. دوهمه خبره دا وه چي د څو تنو ویښو زلمیانو د بندي کېدو په نسبت د رشاد صاحب له پاره خواخوږي هم پیدا

سوې وه. په عین حال کې رشاد صاحب هم څه بد شهرت نه درلود که څه هم د مرحوم شیخ صاحب په پرتله نه وو. مګر مجموع شرایطو ډېره رایه ورته راوړل. خو اصله خبره دا ده چې دغه عمل ته انتخابات نه سي ویل کېدای. رشاد صاحب خو د اظهار وجود له پاره مجبور وو چې کاندید سي اما شیخ صاحب ولي؟

۱/ حکومت د خپل ټول خبرت او قدرت سره فیصله کړې وه چې له کندهاره څخه د ویښو زلمیانو له جملې څخه څوک را نه سي، ځکه نو هغو ته د انتخاب امکان باقي نه وو پاته چنانچه رشاد صاحب په هغه وخت کې عسکري خدمت ته جلب سو. نو که شیخ صاحب نه وای هم د رشاد صاحب له پاره په دغو انتخاباتو کې(؟) که ئې انتخابات هم وبللای سو د توفیق امکان نه وو، نو که شیخ صاحب په صحنه کې نه وای دا ځای بل چا ډکاوه او هغه به یقیناً چې لفظي او عملي تجاوزات هم په مبارزه کې ورسره ملګري کړي وای. آیا د بڅرکي دغه ارمان په زړه کې پاته دئ؟

۲/ د حکومت سیاست عام وو یوازي په کندهار ئې اړه نه درلوده اصلي خبره دا ده چې حکومت خپل د دموکراسۍ دوکان ټول کړی وو په اکثرو ښارو کي ئې د یو دوو استثنآتو پرته خپل سیاست عملي کړی وو. کله کله ئې ځیني نه پېژندل سوو خلکو ته موقع ورکړې وه. یا بهتره ده چې ووایو موانع ئې نه وه ورته ایجاد کړي. په کندهار کې مرحوم شیخ صاحب او په کابل کې میرعلي اصغر شعاع د دې ډول عدم مداخلې مثالونه دي. البته چې عدم مداخله نه باید مداخله وبلل سي. د مرحوم شیخ صاحب له پاره د حکومت په نظر کي یو بل حکمت هم موجود وو. البته د محلي حکومت په نظر کي او هغه دا چې:

مرحوم شیخ صاحب په هغه دموکراسي د خلګو په انتخاب په ښاروالي کې نماینده ټاکل سوی وو او هلته د نورو نماینده ګانو په خوښه او انتخاب د ښاروالۍ په انجمن کي د غړي په صفت غوره سوی وو. په هغه انجمن کي ئې هم نفوذ درلود هم ملګري. په داسي حال کې چې هغه وخت د بلدیې انجمن په بلدیه کي د تصمیم نیولو مرکز وو. هغه وخت تر ښاروالۍ دوه جریانه موجود وه چې د ښاروالۍ انجمن په هغه کي منفي یا مثبته اغېزه درلودای سوه.

۱/ عبدالغني خان ګردېزی چې یو سابقه لرونکی رشوت خور وو بلدیه ئې چې تر دولتي بودجې نسبتاً دباندي مستقله موسسه وه تر نظر لاندي نیولې وه او د خپلي بدي استفادې له پاره ئې ډېري تعمیراتي پروژې په زړه کي روزلې. تر څو د بلدیې انجمن په خپل موجود ترکیب کي فعال او موجود وو. او مرحوم شیخ صاحب له کافي نفوذه څخه په هغه انجمن کي برخمن وو. د عبدالغني خان پروژه پر مخ نه تله ځکه ئې نو باید په لطائف الحیلو شیخ صاحب له منځه ایستلی او انجمن ئې ختم کړی وای. د شیخ صاحب و شورى ته په لېږلو کي دغه حکمت هم نغښتی وو. ځکه ئې د هغه پر خلاف مشخص اقدام و نه کړ.

۲/ شاه محمود خان لا د خپلي دموکراسۍ د کڅوړي خوله نه وه ترلې چې دغه د اتمي دورې شورا په انتخاباتو کي عبدالمجید خان زابلي هم د ګډون اراده کړې وه او دا طرح ئې د حاجي ګل محمدخان سره چې هغه وخت ښاروال وو او د ښاروالۍ د انجمن سره ئې ښه روابط درلودل شریکه کړې وه. په هغه صورت

کي به نو شيخ صاحب هم په انتخاباتو کي ګډون نه کاوه اما کله چي عبدالمجيد خان چي هغه وخت د شاه محمود خان په نظر کي نامطلوب شخصيت وو، خو عبدالمجيد خان زابلي چي وضع پر وخت درک کړې وه له دې کاره منصرف سو او حاجي ګل محمد خان د دغه عمل قرباني سو او انجمن ئې متلاشي سو.

عبدالغني خان موقع ومونده چي هم د مرکز سیاست عملي کړي هم و خپل نصب العين ته ځان ورسوي انجمن کمزوره سو. ويښ زلمی له کندهاره انتخاب نه سو. شيخ صاحب له انجمنه ليري سو. حاجي ګل محمد خان له ښاروالۍ څخه وايستل سو. دا ټوله آسانه او په مسالمت آميزه توګه چي په زوره ئې هم دغه ټول کارونه کولای سول.

په عين حال کي عبدالغني خان دا توقع هم درلوده چي شيخ صاحب د دولت پلوی او د ده مدافع وکيل واوسي. چي هغسي نه وسوه. په شورا کي د شيخ صاحب نژدې روابط د محمدکريم نزيهي، حاجي خالق داد د زابل وکيل، ګل پاچا الفت (مخالف فرکسيون سره وه) او کله چي د عبدالغني خان د اعمالو خلاف په شورا کي بحث وو، شيخ صاحب د هغه په غندنه کي سهم درلود جدي او ډېر او پر هغه سربېره ئې حاجي شاه محمد خان (حاجي شانو) څو واره شيخ صاحب ته راواستاوه هغه ئې له خپل موقف څخه منصرف نه کړ او زه د دې خبري شاهد يم. البته د عبدالغني خان پر خلاف د شورى خبرو ژر کوم تاثير و نه کړ. دلته يوه خبره ځانته توجه ور اړوي هغه دا چي:

دغسي عمل د خال محمد خسته سره هم وسو، په داسي حال کي چي هغه تر رشاد صاحب سپين ږيری هم وو. عبدالاول قريشي، محمودي او غبار بنديان سول. نظرمحمد نوا ... هم نه سوه انتخاب، هيڅا و نه ويل چي د دغو ذواتو پر ځای حکومت څوک ودراوه؟ هر شکايت چي ئې وو هغه ئې د حکومت د غير دموکراتيک عمل څخه وو. څا نه وويل چي ميرعلي اصغر شعاع د غبار پر ځای راوستل سو يا د محمودي. او نه هم د هيڅا ځای تېکه سوی او معلوم وو. د هغه څا سره چي مخالفانه چلند سوی دئ د هغه نوم ياد سوی دئ نه داسي لکه بځرکي يا غبار چي ليکي چي د څا پر ځای څوک راوستل سو. حتی تر اوسه معلومه نه ده چي د خال محمد خسته، عبدالاول قريشي، نظرمحمد نوا، غبار، محمودي ... پر ځای څوک ورغلل يا وروستل سول؟ د هر څا عمل په شورا کي د څېړلو ارزش لري خصوصاً په هغه وخت کي چي دموکراسۍ وجود نه درلود نو که موږ وواېو چي ميرعلي اصغر شعاع د غبار پر ځای راوستل سوی دئ هغه په بندي خانه کي مړ سو، غبار خو لا ژوندی راووت او تر کلو پوري ژوندی پاته وو.

په دغه حال کي ګل پاچا الفت چي ډېر ښه سړی وو او محمدکريم نزيهي چي منور سړی وو او دواړه د شيخ صاحب انډيوالان وه مکرراً شوری ته تللي وه او ګل پاچا الفت خو لا ويښ زلمی هم وو. ښه مي په زړه نه دي چي وکيل نورمحمد خان هم مکرراً وکيل سوی وو که نه؟

نو که دموکراسي نه وه يا انتخاب دموکراتيک نه وو دا خو د حکومت پړه ده هر څوک ئې بايد وغندي، که چيري د مرحوم شيخ صاحب په غير اصولي مواردو کي د دولت پلوي کړي وي څوک دې مثال ورکړي، آيا د حکومت پړه پر ده اچوي؟ دا نو فقط يو کندهاري خاصيت دئ. د شيخ صاحب له نظره په انتخاباتو کي د هغه ګډون هم د رشاد صاحب هم د ويښو زلميانو

هم د وخت ټولو په مصلحت وو او نوري خبري چي هر څوک کوي هغه ببخایه دي.

تا لیکلي دي چي زه د بڅرکي خبره رد کړم. زه پوښتنه درڅخه کوم چي آیا هغه بهٔ د دغو مفاهیمو درک ولري؟ آیا د دغه مطلب تردید به دا معنی نه ورکړي چي نوري خبري ئې نو سمي دي؟ په داسي حال کي چي زه ورته ګورم ناحقه خلګ ئې د ویښو زلمیانو په لست کي شامل کړي دي او د خپل کتاب پر ۱۵۲ مخ ئې خپل قبله ګاه حاجي محمدانور خان اڅکزي ته دا افتخار ور په برخه کړی دئ چي د ملا خیرمحمد اڅکزي په ملګري ئې د فرنګي میمه راتښتولې وه په داسي حال کي چي دا خبري په دغه عصر کي د شرم موجب ګرځي.

د غبار صاحب د تاریخ دوهم جلد دلته په ټولو سالمو قضاوتونو د تاریخ تر درجې کښته ارزیابي سوی دئ.

پر ۲۰۰۱/۵/۱۳ تاریخ چي مي ستا سره په تلیفون کي خبري وکړې هغه وخت مي وعده درسره وکړه چي ژر به مفصل لیک درواستوم انسان په عام صورت نه پوهېږي چي "ماذا تکسب غداً" یا د شاعر په وینا "کلام الیل یمحوه النهار" ستا تر خبرو وروسته د خپل استوګنځي پر خوا روان سوو (زه، زما مېرمن، فریده، د هغې زوی هیواد، او زما کشره لور وړمه) د فریدې په موټر کي او د هغې په ډرایوري د غمي له کوره په خیر را روان سوو. تدبیر (کند بنده – تقدیر کند خنده) درې څلور کیلومتره وړاندي نه وو تللي چي له کیڼي خوا یو موټر په غیر جایز سرعت (په ښار کي دننه – خصوصاً د امستردام په ګڼ مېشته ښار کي) هغه هم له غلط لاسه څخه د یوه غیر مسئول ځوانکي په قیادت راورسېدی موږ له راسته لاسه ور ووتلو. زموږ موټر ئې وواهه په داسي حال کي چي هغه دوه لوټه وخوړل، هنداري ئې ټوله ماتي سوې، باډۍ ئې کلوچه سوه، د مقابل طرف د موټر پزه له کیڼي خوا خړیته سوه خلګ راټول سوه، خو اروپایي خلګ وه لیري ودرېدل، فوراً د ترافیک مسئولان راغله د حادثې محل ئې وکوت فاصلې ئې ولیدې پر او وړ ئې تشخیص کړل فوراً ئې امبولانسونه راوغوښتل له پورته څخه هلیکوپتر هم د مرستي په منظور راورسېدی حادثه ډېره جدي وه خو تصادفاً چي موږ ئې هر یو له موټره را ایستلو یا راوتلو په څلورو امبولانسونو کي څلورو بېلو بېلو شفاخانو ته بوتلو. یوه شپه ئې د معایناتو له پاره قرنطین وساتلو. زموږ هر څه په موټر کي پاته سوه، د وړمې ګوتي ماتي سوي وې لاس ئې وروتاړه او په هغه ورځ ئې رخصت کړه. فریده او زوی ئې هم ښه وو کومه عضوي صدمه ئې نه وه لیدلې هغه هم په هغه ورځ کور ته په خیر ولاړل.

زه هم جوړ وم په دا سبا ۲۰۰۱/۵/۱۴ ئې ترخیص راکړ. خو زما د مېرمني د ښنګرونو قالبونه له دواړو خواوو مات سوي وه. یوه هفته په شفاخانه کي پاته سوه وروسته تر یوې میاشتي نه د دې پښو کار کاوه نه د وړمې لاس او زه په خپل ژوندانه کي پر دوی دوو متکي یم. یوه خواره راوړي بله ئې جوړوي، دوی دواړي او زه تقریباً پنځه هفتې د فریدې کره پاته سوو. څکه نو زما خطونه هم وځنډېدل. موږ درې چي په اوله ورځ له مرګه او خوره څخه خوندي راوتلي وو تر اوسه هم ښه یو البته پروګرامونه مو د معایناتو او دوا دارو ... تر شا پاته سوه. وړمه او مور ئې اوس لا هم تکلیف لري البته ډېر کم دئ هیله ده چي ژر ښه سي.

الله دي مل او ساتندویه اوسه

خیرخواه او دعاګوی - هاتف



د شلمي پېړۍ په اوله نيمايي کې د راډيو او تلويزيون د رسنيو انکشاف، معلومات نالوستو کسانو ته هم ورسول او د کمونستو، فاشيستو او ديکتاتوري نظامونو له پاره، چې غوښتل ئې د خپلو پولو په حدودو کې پر پوهه او فکر باندې سانسور جاري وساتي، د هوا د څپو له لارې د نا سانسور شويو موادو د راتلو مخنيوی وار په وار مشکل شو. د شلمي پېړۍ په وروستيو کلونو کې چې د شوروي اتحاد کمونيست نظام نسکورېدۀ په لسګونو زره جنګي الوتکې، ټانکونه او زغره وال ګاډې ئې د اردو په ګاراجونو کې کاغذ پېچ ولاړ ول. د ګڼو صاحب نظرو رايه دا ده چې د دې نظام او د اوسنی زمانې د کابو ټولو استبدادي نظامونو په نسکورېدو کې رسنيو لويه برخه لرلې ده.

د مطبعې له اختراع را وروسته د علم او معلوماتو عموميت د بشر د فکر او فرهنګ په دنيا کې دويم لوی انقلاب بللی شو. خو موږ اوس د دريم انقلاب په زمانه کې اوسو.

د انټرنيټ زمانه پيل شوې ده. انټرنيټ متعارفي رسنی لکه کتاب، راډيو، تلويزيون، ورځپاڼه يا مجله په خپله لمن کې را نغاړلي دي او د ټولو له امکاناتو استفاده کوي. په انټرنيټ باندې نه حکومتونه، نه د رسنيو ادارې او نه نورې موسسې هاغسې کنټرول لري لکه پر نورو رسنيو چې ورته ممکنه ده. انټرنيټ ته د بشر مشترک مغز ويلی شو ځکه د بشر د ټول معرفت د خوندي کولو وړتيا لري او هر چا ته دا چانس ورکوي چې د فکر او فرهنګ په توليد او خپرولو کې برخه واخلي. نورې رسنی د محدودو کسانو په ذريعه معلومات خپروي مګر انټرنيټ هر چا ته اجازه ورکوي چې د فکر او فرهنګ په توليد کې برخه واخلي او خپله خبره د دنيا ګوټ ګوټ ته ورسوي.

انټرنيټ د انسان د فکر او فرهنګ په تاريخ کې دريم لوی انقلاب دئ. موږ که د دغه انقلاب په اهميت هر څومره ژر خبر شو او خپلو غوښتنو، ارزوګانو او پروګرامونو ته د دې نوي واقعيت په رڼا کې وګورو هغومره به د کلتور او معرفت په ميدان کې ځغاسته راته اسانه شوې وي.

د معرفت دا نوې زمانه تر هر څه ړومبی له موږ څخه زغم او حوصله غواړي. تر دې وروسته چې هر څوک پرته له سانسوره کولای شي خپل نظر څرګند کړي نو داسې خبرې به دېرې ولولو او واورو چې موږ ئې له خپلو اقدارو، نظرنو، ارزښتونو او ګټو سره په ټکر کې وينو. که په دغو سمو يا ناسمو اعتراضونو غمجن او عصباني کېږو، معنا ئې دا ده چې خپله انرژي بې ځايه لګوو. انټرنيټ د نورو رسنيو په نسبت هر ملت او هر وګړي ته که هغه هستمن دئ يا نېستمن او که زورور دئ يا کمزوری، مساوي امکانات برابر کړي دي. اوس د اقدارو، کلتورونو او نظريو په کشمکش کې ګټه د هغو قامونو په نصيب ده چې پر زغم سربېره د کار کولو او مهارت حاصلولو همت ولري.

*******

